د احمد شاه بابا دزیږیدنی د ۲۷۰ یمې
کالیزی دسیمینار په ویاړ

# دپانی پت قهرمان

## لوی احمد شاه بابا د خلکو په نظرکې

اکادمیسین رشاد

کابل ۱۳۷۰

د توري او قلم پاد شاهي خوند کړي تاسره
د شعر و داب ، جهاد امامه احمدشاه !
(هلالی)

د پاني پت قهرمان

# لوی احمد شاه بابا د خلکو په نظر کی

د افغانستان د علومو اکادمي
د پښتو څیړنو بین المللي مرکز




لیکوال

اکادمیسین پوهاند رشاد




کابل - ۱۳۷۰

دکتاب نوم : دپانی پت قهرمانانو احمد شاه بابا دخلکو په نظر کی

لیکوال : اکادمیسین پوهاند عبدالشکور رشاد

مهتمم : ظاهره هنگامه خروتې

خپرونکی موسسه : دافغانستان دعلوموا کادمی

دچاپ ځای : دښوونې اوروزنې مطبعه

تیراژ : ۱۰۰۰ ټوکه

کال : ۱۳۷۰ هـ. ش

پر له پسې گڼه : (۵۰)

# فهرست

دقانون القرآئت په سریزه کی

* * * * * *

دمیرزاعبدالهادیعشرت فتحنامه

د لاش د کلا کتیبه

ددهلی دنیولو فتحنامه

دفتاوای احمدشاهی په سر یزه کي

په پښتو احمدشاهی شهنامه کي

دالفنامې دشرحي په سریزه کي

دمحمداسماعیل الحسینی الجامي قطعه

داحمدشاه باباکرامت دمنشیمحمود الحسینی په تاریخ احمدشاهی کي

له «کرامات احمدشاه» څخه اقتباس

دبحرالفوائداحمدشاهيپه سریزه کي

درستم الحکماایرانی بیان

دپنډت کاشی راوهندو شهادت

* * * * *

وروستني روایتونه:

دعمادالسعادت دمؤلف نظر

دسلطان التواریخ دمؤلف لیکنه

دحاجی جمعه بارکزي په دیوان کي

دعلامه سید جمال الدین افغاني نظر

دعلامه فرید وجدي نظر

په داستان ترکتازان هندکي

په نیرنګ افغان کي
داعتضاد السلطنه ایرانی شهزاده نظر
د کلکته ریو و نظر
په تاریخ سلطانی کي
په سراج التواریخ کي

## زموږ دزمانی قضاوتونه :

دپښتنوپه تاریخ کي
دعلامه اقبال لاهوري نظر
د پیام مشرق په مجله کي
دیعقوب دا داشي لیکنه
دملالي دعقیدت ګلونه
داسلام بر بنده توره (احمد شاه)
دعلامه سیدسلیمان ندوی نظر
دلوی استادعلامه حبیبی نظر
داسلام ناموړ جانباز
سترابدالی
دافغانستان په نوميا لیو کي
احمد شاه ابدالي
په آریانا دایرة المعارف کي
دمیر حیدرصا جزاده نظم
دمیرغلام محمد غبارنظر
دتورن ارکان حرب علی احمد جلالی نظر

داستاد غلام جيلاني جلالی نظر

دمهدی فرخ ایرانی نظر

دميسور داسلامي سلطنت جوړيدل داحمد شاه دتړرى صد قه ده .

د پروفيسر داكټر گنډا سنگه نظر

## اروپايان څه وايي ؟

دجارج فاسټرنظر

دمانستوارټ الفنستون نظر

دفريرفرانسوي نظر

دفريدرك انگلز نظر

دكونيل ميلسون نظر

داولف گيرونظر

تقريظ

# دپانې پت قهرمان لوی احمدشاه بابا دخلکو په نظر کې

دلوی احمدشاه بابا په باب څېړنه خورا زیاتو مطالعاتو او غنې منابعو ته د پراخې اوا وزدې دسترسې مستلزم ده او دا کار په عین زمان دڅېړنې او لویې حوصلې او لیکنې دعلمي صلاحیت غوښتونکی دی، چې د ښه مرغه ددغو ټولو اوصافو سره زموږ دمعاصر پوهاند اکاډمیسن رشاد په زیاراوزحمت بریالی سرته رسیدلی دی .

باید وویل شي چې داحمدشاه بابا تاریخ په مکاني لحاظ دآسیا دیوې لوې برخې او په زماني لحاظ دسیمې دلویو حوادثو او تحولاتو له عصر (اتلسمې پیړۍ) سره اړه نیسي نو ځکه ددغه علمي تحقیق او څېړنې ارزښتمندې د سیمې په سطح کې یعنې هغه سیمه چې نن هندوستان ،پاکستان ،ایران دمرکزي آسیا جمهوریتونه او په خاصه توګه افغانستان په ځای راکښېباسي احتوا کوي .

داچې احمدشاه بابا حتی چین ته هم استازی لیږلی وو او دعثماني خلافت له دربار سره یې هم اړیکې ټینګې کړې وې او دخپلو یوې عمده فتحې ګزارش او راپور یې دعثماني خلیفه دربار ته لیږی، داپخپله په اتلسمه پیړۍ کې داسیا دیوې پراخې سیمې د ډیپلوماسي خصوصیات او ټاکلي نزاکتونه راڅرګندوي اوددغه افغان امپراطور دسیاسي بصیرت او ځیرکتیا عمده نښې هم رابرسیره کوي

په دې کې شک نشته چې زمونږ دوطن په تاریخ کې احمدشاه بابا یو ځلانده سیاسي او نظامي ستوری دی. دی هغه مهال دیو نظامي څېري په توګه څرګند سو چې افشار نادر په هرات کې ابدالي او په کندهار کې هوتکي حکمراني ورانې کړې او هندلور ته یې سوقیات پیل کول.

په دغه وخت کې دافغانستان حکمرانې په قبیلوی او عشیروی حساب کې راتلې او داتصادف نه ده چې دافشار نادر تر مرګ وروسته احمد شاه بابا ته د شیرسرخ په لویه جرګه کې دامارت جوغه تفویض شوه

دی دابدال په بناخ کې دپوپل پر لیکه دسدو قبیلې ته منسوب و او دایـوه دخانې کورنۍ وه چې احمدشاه بابا پکښې راپورته شو، ځکه دده پلار او نیکه ګان دقبیلې خانان وو .

دی که څه هم یو ډیر ځوان سړی و یعنې په ۲۵ کلنۍ کې دغـه لوی مامـوریت او رسالت ته دعوت سو خو په ډیره کمه موده کې یې داثبوت ته ورسوله چې دی د ډیرو لویو کارونو له پاره استعداد لري .

دی یو دراکه قوماندان و او افشار نادر هغه مهال چې د خپلې کورنۍ داختلافاتـو او تضادونو سره مخامخ و، ده ته یې یوه شپه وویل : « من در سیمای تو می بینم کـه روزی قدرت بزرګ را کسب کرده و در آن زمان په خاندان من وفادار باشی »

احمدشاه بابا داوفاداري دخپل ژوند تر پایه وساتله او دخراسان واکمني یې دنادر و کورنۍ ته ور کړه ، خو دنادر اخلاف د پوره استعداد او صلاحیت خاوندان نه وو

احمدشاه بابا سربیره پردی چې یو دراکه او ځیرک سـیاسی او سازمانده و دخپل وطن او قبیلوی تړلنې دپیژندنې لوی پوه هم و ، ده د قومونو ا وقبایلو ترمنځ دا تحاد مزی قوی کړه او ددی له پاره چې دقومونو مشران تر خپل حضور لاندی وساتي دکندهار ښار یې د کوڅو او محلو په لحاظ پر قبیلو وویشی او بیا یې ددغو مشرانو یوه جرګه یا دیوان جوړ کړی چې په هر کار کې به یې دهغو مصلحت ا خیستی * احمدشاه بابا

---

* احمدشاه بابا پـه افغانستان کې دټولو قومونو او اولسونو داتحاد بنسټ عملاً منځ ته راوړ. کله چې هغه په مکه معظمه کې د ا فغانې حاجې خانې مانۍ جوړه کړه نوهلته یې ولیکل چې دلتـه په افغانان اوسـی . دافغانانو څخه د ده مطلب تول هغه اولسونـه و ه چې دافغانستان پـه سیاسی حدودوکې یې استوګنه درلوده . دلته پښتون ، تاجیک ، هزاره ، ازبیک ، ترکمن اونو رتول شامـل و و او داحمدشاه بابا د دربار په بیروکراسی کې د د غوترلوقومونو اواولسونو باصلاحیته خلکو عهدی او ماموریتونه درلودل چې تفصیل یې په تاریخونو کې راغلی دی .

و

په خپله ټولنه کې د روحانیت د نفوذ او اغیز و څخه پوره پوهېدی او نو دا وجه وه چې د ډېرو لویو روحانیونو ملاتړ یې د ځان له پاره حاصل کړ چې په دې برخه کې د څو کنو د میاعمر صاحب او میانقیر الله جلال آبادی ثم شکار پوری نومونه ډیر شهرت لري او حتی د حضرت شاولی الله دهلوی پاملرنه یې هم ځانته راړولې وه

دی یوازې جهانګیرنه ؤ او نه یې د وینو تویولو سره مینه درلوده بلکې یو مصلح ؤ، خو دعصر مقتدر سلطان ؤ، او ټولټاکلې نقشه یې درلوده چې د افغانستان کلتوري او جغرافیایي حدود سره متمم کړي او دهغه پرشاوخوا ملکونه داقمار و په توګه په دغه مرکز داسې عیار کړي چې هلته هم عدالت حکمفرما وي .

دده په باب دختیځو او لویدیځو پوهانو او څیړونکو اثار لیکلي دي او دا ټوله پردې خبره اتفاق لري چې احمدشاه بابا یو بابصیرته، دراک ، او دخپل عصر په دیپلوماسی آګاه شخصیت و ، دی یو زړور قوماندان و چې د جګړې په ډګر کې یې حریف ته دسو بې او کامیابي موقع نه ور کوله ، خو کله چې به یې کوم ځای فتح کړ نو دهغه ځای اداره یې دهم هغې سیمې با صلاحیته شخص ته ورسپارله خو هغه به یې خپل سرته نه پرېښووې او ددې له پاره چې دهغه د عدالت چارې او مرکزي دولت ته یې وفاداری و څارل شي نو دخپل اعتماد وړ یو شخصیت به یې ورسره ملګری کاوه.

احمدشاه بابا څو بعدی شخصیت و ، دی نه یوازې یو با ډسپلینه اداره چې یو فاتح قوماندان او دعصر دسیاست په رمز پوه دیپلومات و ، بلکې دفرهنګ یو علاقمند او پرحوصله ایجادګر هم و ، چې دده داشعارو دیوان ددې مطلب ډېر ښه دلیل دی.

دی دعرفان او تصوف په ډیرو مغلقو رموزو هم آګاه و ، او د هغه وخت دعرفان پالونکو او لویو متصوفینو لکه حضرت میانقیر الله جلال آبادي او شاولی الله دهلوی سره دده مکاتبه شاهدی وایي . او د میانقیر الله مکتوبات چې د غه ستر باچاته لیکلي پکښې شته داپه ځغرده ښیي چې احمدشاه بابا دعرفان او طریقې خاوند شخصیت و .

دغه کتاب چې اکادمسین استاد رشاد لیکلی دی او په عنوان کې یې دپانی پټ نوم هم پیوند لری دایوه لویه تاریخی پیښه وه او استاد رشاد د دغې حادثې او فتح په رموزښه آگاه دی چې په عنوان کې یې دپانی پټ نوم وراچولی دی .

زه په پوره باور ویلای شم چې دا اثر یعنې (دپانی پټ قهرمان لوی احمد شاه بابا دخلکو په نظر کې ) د مختلفو جهتو نوڅخه د ارزښتو نوڅخه ډک یو اثر دی او لکه دیوه ستر عالم پوهاند اکادمسین او بالاخره استاد څخه چې یې انتظار کیږی محترم رشاد دهغه په څیړنه اولیکنه کې زیار ایستلی دی ، زه بیاهم باور لرم چې دا به دراتلونکو څیړونکو له پاره دیوه معتبر ماخذ حیثت واری.

دافغانستان دعلومو اکادمی ویاړی چې دغه باارزښته اثر داحمدشاه باباد ملی سمپوزیم په مناسبت چاپ ته سپاری د اکادمسین استاد رشادله پاره ښه صحت اودنور عملی کار طاقت مود یره ښه ارزوده.

د علومو د اکتر کاندید اکادمسین عبدا کبیر رنجبر

تولو يو دي كه غلجي دي كه ابدالي

ښه هغه چې يې د زړه ښېښه صفا ده

چې عدل يې د نېكۍ وي مېړه هغه

كه اغوستي يې ګډ له د خسته ده

(احمد شاه بابا)

# سريزه:

ان الفضل بيدالله يؤتيه من يشاء

( آیه )

# د لوی خدای په نامه

دعثماني خلافت په درنه کورنۍ کې تر ټولو نو میالی او برمیالی سلطان دوهم محمدخان (۸۵۵- ۸۸٦ ه ق ) دی چې «فاتح» یې لقب و ، ده په ۸۵۷ ه ق کال (۱٤٥۳ ع) د شرقي روما پایتخت قسطنطنیه (اوسني اسلامبول - استامبول) ونیوه او دبیزانس امپراتورۍ یې ړنګه کړله .

دافغانستان نامتو عالم ، عارف او شاعر حضرت مولانا نور الدین عبدالرحمان جامي هروي رحمة الله علیه ( ۸۱۷-۸۹۸ ه ق ) ددغه مجاهد سلطان په ستاینه کې یوه غرا قصیده لري ! چې مطلع یې داده :

کم کسي بر سر یر جاه و جلال
چون تو کرد اکتساب فضل و کمال

زموږ دزماني اسلامي فیلسوف ، بې ثمي او بې ریا شاعر علامه اقبال لاهوري (۱۳۵۷ ه ق مړ) د پاني پت دقهرمان ستر تو لواکلوی احمد شاه بابا غازی رحمة الله علیه (۱۱٦۰-۱۱۸٦ ه ق) په ستاینه کې ویلي دي :

مثل فاتح آن امیر صف شکن
سکه ای زدهم باقلیم سخن

(مسافر ٤۱ مخ)

په دغه بیت کې علامه اقبال زموږ غازي لوی احمدشاه بابا (رح) دترکي له عثماني خلیفه سلطان محمدخان فاتح سره تشبیه کړیدی ، وجه شبه یې له توری او دبدبې سره دفضل و کمال درلودل دي.

زموږ د زمانې حساس پښتانه شاعر د پېښور او سیدو نکي حاجي خان میر خان «هلالي» دغه مطلب بې له تشبیه څخه داسې راوړي دی:

د توري او قلم پادشاهي خوند کړي تاسره
د شعر و داد، جهاد امامه احمدشاه!

زموږ د توري او جهاد اتل، د پاني پت د میدان گټندوی غازي لوی احمدشاه بابا یوه پښتانه شاعر د اسلام بربنده توره بللی ده یوه هندوستاني لیکوال بیا زموږ غازي بابا ته هغه فاتح لقب ور کړی دی چې د هندوستان د تاریخ پاڼه یې اړولې ده یو پاکستاني شاعر ده ته خطاب کوي:

اتوریالیه ابدالیه! د هندوستان پر هره ذره باندې ستا د میړانې همت او ایثار افسانې لیکلې دي رشتیا هم تاریخ شاهد دی چې د لوی احمدشاه توری او همت هغه سرکښه او مغرور مرهټیان له ډېرې رسوایۍ او شرمندگۍ سره په ماتې د نربدا د سیند پورې خواته وشړل(۱) چې د کابل د نیولو تکل یې کړی و (۲) او د اورنگزیب عالمگیر (۱۰۶۸ - ۱۱۱۸ ه ق) پر تخت باندې یې د «بسواس راو» د کښېنولو خوبونه لیدل - په دې کې شک نشته چې د ابدالي غازي د سر بازۍ په برکت له هندوستان څخه د اسلام د محو کولو هو ډونه او ترونونه مات سوي دي (۳) او که سنه څیر سو بې ځایه نه ده چې ووایو: او سنی پاکستان د ستر غازي لوی احمدشاه بابا د توري صدقه ده.

---

(۱) په هندوستان کې د نربدا سیند له جبل پور څخه مخ پر لویدیز بهیږي او د بحیره عرب په کهمبایت خلیج کې لویږي، د دغه سیند جنوب ته جنوبي هندوستان واقع دی. مرهټه د جنوبي هندوستان او سیدونکي دي:

(۲) نراین سنگهه په سلطان التواریخ کې لیکلي دي:

د احمدشاه ابدالي د سولې د پیغام په جواب کې مرهټې سپهسالار بهاو وویل: که تر کابله پورې تول سیمه موږ ته را پرېږدي سولې ته به غاړه کښېږدو.

(۳) ویلیام جونس انگریز لیکلي دي: «د پاني پت په جنگ کې هندوانو په گډه سره داسې لاړ تړلی و چې اسلام به له هندوستانه محوه کوي، دا جنگ د صلیبي جنگونو په څیر یو مذهبي جنگ و او د هندوستان د گوټ گوټ راجاگانو گډون پکښې درلود.»

د لوی احمدشاه بابا په هغه لیک کې چې د ترکیې سلطان دریم مصطفی ته یې لیږلی دی هم دغه مطلب سته (وگ ۵۶-۵۷ مخونه)

دلوی احمدشاه بابا دعالی شخصیت بل اړخ (بعد) چي علامه اقبال ستایلی دی، هغه دده علم وادب اوداسلامي ثقافت اوافغانی فرهنگ دپرمخ بیولولو پاره د ده مخلصانه اوصادقانه هڅي دي. لری احمدشاه بابا رشتیا هم عالم، عارف، د دیوان تښتن شاعر، مصنف، عالم دوسته اوادیب پروره پاچاو. علما وو اوعرفاووته یي په ډیره درنه سترگه کتل اودوی یې تشویقول چي دملت دپوهي له پاره په پښتو اودری ژبو کتابونه ولیکي، ددی ادعا دثابتولو له پاره دوه عادل اوصادق شاهدان (په پښتو ژبه کي) فتاوای احمدشاهي او (په دری ژبه کي) بحرالفوایدو درر الفرایداحمدشاهي دی، دفتاوای احمدشاهي په سریزه کي داحمدشاه غازی دعلم، ادب اوشاعری په باب داسي کښل شوي دی :

ددي وخت پادشاه سني دی
په مذهب کي حنفي دی
محبت یې دکتاب دی
بې عددو بې حساب دی
چي عالم لدني دی
کم عالم دده ثاني دی
په صورت اوپه سیرت کي
هم د فکر په دقت کي
سیال یي نشته دی یکتادی
په دي چاره بې همتادی
دی پخپله مصنف دی
په دی کار کي ډیر منصف دی
خوښایسته یې دی تصنیف
چي یې کړای نه شم تعریف
هم عالم دی هم شاعر دی
په نکتو کي ډیر ماهر دی

چي دده دیوان هیرادی
په تحقیق سره هیرادی(*)

تر هیرا ابلکه فایق دی
مشتمل پرد قایق دی

هر غزل یې عشق انگیزدی
او هربیت یې درد آمیزدی

دفتاوای احمدشاهي دلیکوال دغه شهادت بې ملاتړه نهدی، داحمد شاهي زماني په لیکنوکي پرداسي نکتو دیرپیښې زوچې دلوی احمد شاه بابا فضیلت او کمال بیانوی اوله علما ووفضلاوواوشعراووسره ددهدرناوی، تشویق اوتقدیرستایي، دتاریخ احمد شاهی مؤلف منشي محمود الحسیني بن ابراهیم الجامي داحمد شاهي قدرشناسی په باب داسې ویلی دي:

سخن هست سرمایهٔ اعتبار
سخنور کند ازسخن افتخار

نهال سخن را نخستین ثمر
بود عزت وشهرت وسیم وزر

گل وغنچه اش شاد کامی بود
بهین میوه اش نکینامی بود

خصوصاً درایام این سرفراز
شد نکته سنج ، سخنورنواز

که جو هوشناس است وصاحب تمیز
سخن گشته درعصر فضلش عزیز

زفطرت بلندی شاه نکته جو
بکرسی نشانده سخن رانکو

(*) هیرا ـ الماس

بعهدش سخن ورشده بهره ور

زنخل تمنای خود چیده بر

درین حرف دارد کسی گر سخن

تفحص کند صدقش ازحال من

که اول زمن بخت می کردرم

شب وروز بودم هم آغوش غم

کنون ازعنایات شاه زمن

بعزت رسیدم زعز سخن

زقربش شدم درجهان روشناس

زمدحش نمودم شرف اقتباس

دمجاهد اعظم لوی احمدشاه بابا که په یوه لاس کی توره وه، په بل لاس کی یی قلم و. څوموره چی ده دتورو دخاوند انو قدر کاوه، د قلم دخاوند انو قدر تر هغو کم نه و دده په دربار کی به دقلم خاوندان، ملایان او بزرگان دپاچاهی لاس ته کښیناستل او توری خاوندان به کین لاس ته.

داوو دتاج بخش غازی لوی احمد شاه بابا دعالی شخصیت دوه اړخه یعنی توره او قلم - اوس را څو دلوی احمدشاه دشخصیت نوروار خونو (ابعادو) ته:

دلوی احمدشاه بابا دشخصیت ددغو دووخورا څرګند و اړخو نو په څنګ کی دده دتدبیر اړخ هم دذکر او حتی ستاینی وړدی. احمدشاه غازی مفکر، مبلغ او مصلح واکمن و، ده دخپل قام سره خواخوږی درلوده. ددوی دمروچ کولوله پاره یی فکر کاوه، دقبیلو دنزدیکت او یووالی له پاره یی زیار یوست، ده غوښتله د پښتنو تولی قبیلی یوموتی سی اوله دوی څخه یوملت جوړ کړی، دی پوهیده چی قوت په وحدت کی دی دده پیغام داتحاد او اتفاق پیغام و، ځکه نو علامه اقبال دده دغه فضیلت په باب ویلی دي:

«ازضمیرش ملتی صورت پذیر»

غازی لوی احمدشاه بابا غوښتل د پښتنو پر خولاروروانی قافلی پر یوه لاروخوځوي اودانیت وپرك بهیرونه د یوه منزله لوري ته رهي کړي، ده زیار یوست چې دټولو قبیلو هدف یو کړي اویوې دعشیرې زیار دبلی عشیری د سالم تپاك اومثبت هاندمتمم او مکمل سي، دلوی احمدشاه بابا د دغی عالي هڅې په باب یوانگریز ختیځ پوه Malleson په خپل کتاب The his story oF Afgans داسي کښلي دي :

« داحمدشاه ترټولو لوی قابلیت داوچي د پښتنو قبیلې یې متحدي او منظمي کړلي. ده به همیش و یل :

زه د دی له پاره پاچاسوی یم چي دپښتنو پاچهي قایمه کړم اوله پښتنو څخه ملت جوړ کړم .» مفکر اومصلح احمدشاه بابا د دغي ملت سازی په څنگك کي دا دوراندیشي اوخواخوزي هم درلوده چي پښتانه باید خپل ، ارثي خصلتونه اومعنوي رشي له لاسه ورنه کړي اودنورو په رنگك کي یې خپل رنگك بول نه شي.

دټولنپیژندنی (علم الاجتماع) دپوهانو په عقیده کله چي دخو قبیلو یاقامونو افراد دیوه مشترك هدف له پاره دلاري ملمسی اودیوه منزله په لورځي نودوی له دې گډون اواختلاطه څخه که څښتن وي داسي نفسیاتي اغیزې منځ ته راځي چي د مورثي خصلتونو روحیه کمزورې کوي اومعنوي دودودستور ته زیان رسوي .

دوربینه اودوراندیشه بابا په دې نکته ښه پوهیده، ده که له یوې خوا په شمالی هندوستان کې دروهلکهند دروهیلیو پښتنو اوپه گران افغانستان کې د کهسان دابدالیو ترمنځ دهدف ، لاري، جذباتو اومیلانو په هم آهنگولو کي زیار یوست په دغه وخت کی یې د دوي دارثي روحیې اوقامی خصلتونو دخوندي ساتلو له پاره هم مجاهده کوله.

حق گو په عالم او صوفی مشربه بزرگك ملا عبدالباقی کاکړ (۱۳٤٤ه ق.ر) په خپل منظوم کتاب «تهذیب الواجبات لتخریب العادات» کي داحمدشاه غازی ددغي مجاهدې یادونه داسي کړیده :

ښه مسلک د شاه احمد و، تېر دې قرنه شو تمام
خداى به نوى تجديد جوړ که، نور ځلانده د اسلام

رنګارنګ پوښاک يې راوړ سوداګرو کندهار ته
ښه بابا واري پرو کړ، پريې نه ښو وخريد ار ته

له رحمتي ټوله وسول چې عيال به مي ملا کړ شي
په وطن کې بې له شويه، کپړه نه وه چې پوښاک شي

سوداګر مبهوت پاته، په ميدان کې يې ايري که
ټول قيمت يې ورته ور که، خداى دى نه کړه چې ښيري که

رعيت ټوله خندانه په معنا سرې عارف شول
رنګارنګ کپړې موقوفې چې په دې صورت واقف شول

پر په عقل نوشته چي احمدشاه فخر افغان
شهنشه د خراسان، سند و پنجاب و هندوستان

د کور پوښ يې قلمکار و، چاپي شوي د ملتان
پر تربت دې صد رحمت شي هم فقير وهم سلطان

فقير مشربه سلطان لوى احمدشاه بابا زياتره پخپله دخمتا (کرباس) کالي اغوستل او د کور د مېز منو کالي يې له قلمکار کرباسه څخه و چې په ملتان کې به چاپېدل او اوس موږ دغه ټوکر «چيټ» بولو.

د سوداګر د رنګارنګو ټوکرانو په سوځولو کې د لوى احمدشاه بابا حکمت دا و چې د خپل دربار اراکين او نور رعيت په دې پوه کړي چې د خپل وطن شوى (کرباس) زموږ سره ديرښه ايسي د ا رنګارنګ ټوکران مې ځکه وسوځول چې د قام ځلمي په روزدې نه سي او بيايې کوم بل سوداګر را ورلو ته زړه ښه نه کړي.

رشتيا هم مفکر احمدشاه بابا په دې ښه پوهېده ترڅو چې د بوه مصلح او مبلغ په عمل کې د مطلبو بوا صلاحاتو او ابلاغ نخښې څرګندې نه وي په وينا کې يې اغيزه نشته ځکه نو ده چې څه له قامه غوښتل هغه يې پخوالا پر ځان عملي کړل او د وطن د جولاګانو په خمتا يې اکتفا کړې وه.

دمصلح اومفکر غازي باباذ شخصیت بل اړ خ (بعد ) ددهدینداري، تقوی او خدای پیژندنه (عرفان) و، دهدافغانی سلطنت پهقیام اوتحکیم کي یواځي لهقامی روحی څخه کارونهخیست بلکه داسلامي روحیی اودینیاغیزې څخه یی هم په بریالی توګه ګټه واخیستله. دهداسلامي او امر و اونواهیو دپرځای کولو؛ دینی ریاضتونواو نیکو اعمالو اونیک نیتی په برکت په رعیتوکي دومره ګرانښت (محبوبیت) موندلی وچی خلکو یواځي دمتبوع پاچاپه سترګهنه، بلکه دیوه بزرګ، ستانه اوولی په سترګه ورته کتل اودده په پیروي اوفرمانبرداري کيیی ثواب لټاوه، دسترغازی لوی احمدشاهباباپه نسبت د بزرګی اوولایت عقیده تراوسه پورې لاهم په پښتنو کي پاته ده اودیرخلک یی اوس هم لهارادت سره دښیغی دوندلوله پاره زیارت ته ورځي، مرادونه غواړي اودهروی اوقبول دخدای حضورته شفیع کوي.

نامتوفرانسوی فلیسوف موسیوګوستاف لیبان (۱۸٤۱ـ ۱۹۳۱ع) ویلی دي:

«دیوه مفکر قائد اوسیاستمدار له پاره په خپلوخلکوکي دقامی اومذهبی نفوذ خاص لول له هغو مواهبو څخه دي چيدقائد اوسیاستمدار دبري امکان د یرزیاتوي اوورپوري تړلی تولنه دقائد ددغهتاثیر له امله دټاکلی هدف لورته پهمنده ځغلی.» زه باورلرم چی دسترغازیلوی احمد شاه بابا پهبریوکی هم دغهنفوذ اوتاثیرچی دده لهعالی شخصیت، خداجویی اوپرهیزګاردی څخه په قام کی پیداسوی ومهمه برخه درلوده.

دلوی احمدشاهبابا خواخوږی اوزړه سوی، دقام او دین تربریدونواوښتی و، یو هند ومؤرخ لیکی :

«احمدشاه ابدالی دپانی پت په میدان کی ترجنګ دمخه مغرورد کنی سپه سالار بهاوته دسولي پیغام ولیزه خودهغهله خواد اپیشنهادپهدې الفاظوردسو: که تورکایله پوری تولهمځکه موږته راپریږدې سوله به وکړو- تردې ترڅه جواب وروسته نو احمدشاه وو یل اوس نوپه وینوتوبیدلو کي زموږمسؤلیت نشته، موږ خپلی غاړي خلاصی کړلي. «یوه بل پاکستانیمؤرخ لیکلي دي:

«دپانی پت په ستره غزاکی دمرهتودمشرواکمن پیشوابالاجی راو زوی بسواس

اوتر بورسدا شیوبهاووژل سول- لوی احمدشاه باباد هغو تعزیت نامه دکن ته دیوه
استاځي په لاس ولیږله چې پیشوابالاجي، اوته یې وړاندي کړي په دغه تعزیت‌نامه
کي ابدالی فاتح د بسواس را وپرځوانیمرګي او د بها وپر وژل کیدلو افسوس
ښکاره کړی و او دایې هم زیاته کړې وه مادسولي پیشنهاد دوی ته وړاندي کړ،
دوی ځوانان وو وینی بې تودې وې زمادسولي پیشنهاد یې ر د کړ.

بهاو او بسواس راو هغه څوك ووچي له د کنه څخه داحمدشاه ابدالي دسر په
سودارارهي سوی ووا وتر کابله یې دمسلمانانو اوبالاخص د پښتنو مځکه دځان کوله
مګرابدالی احمدشاه د دوی دوینو په تو یید لوراضی نه واود دوی دمړینی تعزیت
نامه بې پیشواته واستوله . »

دجوانمرداوانسان دوسته احمدشاه د غه رویه وه چي مانستوارټ الفنستون د
ده په باب دې لیکنی‌ته مجبورسوی دی:

«داحمدشاه وضعه له رعیتو، معاهدینواوحتی دښمنانوسره هم شریفانه وه .
ځکه نو دادرې سره دلي د ده اخلاقی لوړ تیاستایی . »

رشتیاهم دسترغازی لوی احمدشاه عالی اوانسانی اخلاق ووچي ده ر یوه او
منصف سري په زړه کي بې عزت دراود او په احترام سرونه ورته کاږه وو .

لوی احمدشاه بابا دافغانستان، پاکستان اوهندوستان دمسلمانانو په تیره بیا
دپښتنو په نظر کي یوخدای دوسته ، بزرګ او دکرامـا توڅښتن عدل خوښوونکی
خواخوږی پررعیتو مهربانه پاچاو، دوی ده ته ددا سي یوه شهنشاه په ستر ګه کتل
چې له‌توری اوقلم‌سره یې خداجویي، عدل، احسان اوساوك ومعرفت هم دراود.
د ده د زمانی عالم، عارف اوشاعـر ابن منیر پیښوری دی دحضرت امام مهدی
رحمت‌الله علیه نائب بللی دئ او دا یې هم‌لوی احمد شاه بابا ته په خطاب کی
زیاته کړیده، په هندوستان کي داسلام د خپرولواوټینګولو کومه مقدسه دنده چي
غازی سلطان‌محمودغزنوی رحمت‌الله علیه(۳۸۷ ۴۲۱ ه ق) پرځای کړله له‌هغه
نو یالی غازي څخه چې‌ددغه رسالت څه‌برخي‌نیمګړي پاته سولی دهغه دبشپړولوله

پاره لوی خدای جل جلاله ته و تاکلي او دا مقدسه تکمله خدای پاك ستا په لاس اجرا کړله، د نوموړي ابن منیر دا شهادت چي وایي : تول ددین په پیروي یې ، د غازي لوی احمدشاه بابا د شخصیت مذهبي اړخ نه روښانوي .

د احمدشاهي شهنامې ناظم حافظ گل محمد درغوزي (۱۱۲٦ هـ ق زوکړي) غازي لوی احمدشاه بابا د پښتنو فخر بولي او وایي نن د مسلمانانو زړی په ده نازیږي .

د عمادالسعادت مولف وایي : د پاچهانو پاچا ابدالي احمد شاه د فقر مدعی واو پر پوست به کښېنستی .

پنډت کاشي راو هندو چي د پاني پت په لویه غزا کي حاضر واو د شجاع الدوله دایلچي په توگه یې د لوی احمدشاه بابا دربارته تگ و راتگ دراود ، د لوی احمد ـ شاه بابا د خو اجوبي په باب وایي : « احمد شاه به تل د شپي په ورو ستي در یمه کي ویښ و ، تهجد لمونځ به یې کاوه او قرآن به یې وایه . »

د ایست انډیا کمپني یو لوړ رتبه مأمور ما ونستیوارت الفنستون سکاتلېنډی (۱۱۹۳ هـ ق زوکړی ) د لوی احمدشاه بابا د ښه سریتوب په باب داسي لیکلي دي :

He (Ahmad shah) treated mullahs and holymen
with great respeet both from policy and inclina hon.
He was hiemself a divine and an auther anb was
always ambitious of The charaeter of a saint.

ترجمه :

هغه ( احمدشاه) هم د پالیسی او هم د خپل طبیعت د غوښتني په حکم د ملایانو او نورو خلکو ډیر درناوی کاوه ، هغه خپله هم یو بزرگ (مقدس شخصیت) و کتابونه یې تصنیف کړي وو ده همیشه دا غوښتله او زیاریې بوست چي په ځان کي د بزرگانو او اولیانو خوی و خصلت پیدا کړي . دستر غازي لوی احمدشاه بابا د بزرگۍ او کشف وکرا ت په باب د غازي بابا د زماني لیکوال د حضرت شیخ الاسلام ابونصر احمد جام (٤٤١ ـ ٥٣٦ هـ ق ) لمسي سید اسماعیل الحسیني هم لیکلي دي :

کی تواند خامه کردن شرح وصف کشف او
بود درظاهر و درباطن ولي آن شهریار

د لوی احمد شاه بابا د شخصیت په باب بشپړه او هراړخیزه څېړنه ددې سر
پېژندنې ترحوصلې وتلې ده. شبه په داوې چې ګران اوستونکې د دې مجموعې په متن
کې د غازی بابا د معاصرینو لیکنې او شهادتونه په غور واولی دوړوستنیوروایتونه
اوداوسنیو قضاوتونه هم هره برخه په خپل حد کې ارزښت لري، اما دهندوانو اوارو-
پایانوله خولې ښخه زه.وز د لوی احمدشاه باباصفتونه اوریدل دالفضل ما شهرت
به الاعـداءله مقولې ښخه دی. ځکه نوزه ځپله لیکنه دیوه اروپایي څتیخ پوه مالیـسن
پروینا پای ته رسوم :
ده لیکلي دی :
په کومه ګومبته کې چې احمد شاه بابا ښخ دی، د هغې ګومبتی په د ننه برخه
ـکې پردیوالوباندې دا بیتونه کښلي دی :

شاه والاجاه احمد شاه درانی که بود

درقوا نین امور سلطنت کسری منش

ازنهیب قهرمان سطوتش درعهد او

شیرآهورا بهشیرخویش دادي پرورش

میرسیدازهرطرف درګوش بد خواهان او

اززبان خنجرش هردم هزاران سرزنش (۱)

---

(۱) دمالیسون په کتاب کی ددغو بیتونو انګریزی ترجمه داسی راغلی ده.

Ahmad Shah durrani was a great king
such was the fear of his justice that the lion and the
hind lived peacef ully toaether, the ears of his enemies
were incessantly deafend by the noise of his conquest

مالیسون دبیتونو متن نه دی راوړی : پښتو ترجمه یی دمنشی احمدجان په ترجمه
کړی تاریخ افغانستان (۲۷۳ مخ) کی په نثر راغلی ده.

د ډهلي تخت هېرومه چې را یاد کړم
زما د ښکلي پښتونخوا د غرو سرونه
(احمدشاه بابا)

# دده دزمانی شهادتونه:

نو موږي انګریز کرنیل ما لیسن په History of Afghanistan کې وایي : احمد شاه ( ابدالی ) په خپل داخلي انتظام او عدالت د خپلې ګو مبتی د شنختی لیکلي مطلب رښتیا کړی دی .

( اللهم اغفر له وارحمه یاارحم الراحمین )

زه غوارم د کتاب په دې برخه کې د غازي لوی احمد شاه بابا رحمت الله علیه د شخصیت په باب د هغو نظریې راټولې کړم چې د ده د زمانې خلک وو، په د غو معاصرو خلکو کې تر ټولو مخه د ابحث د غازي لوی احمد شاه بابا د خپلې پښتنې مور (زرغونې انا) په وینا پیل کوم (۱) ځکه چې هره مورخپل زوی ولوړ تر هر چا ښه پیژني :

په کندهار کې وایي کیږي ، یو وار چې لوی احمد شاه بابا له خپلو لښکرو سره هندوستان ته ولاړ ، څه موده پس یولا نابیره په کندهار کې چکچو که (آوازه) سوه ، چې احمد شاه شکست خوړلی دی او په ماتې وطن ته راستنیږی ، دا آوازه د زرغونې انا تر غوږو هم ورسید له اودې په خوراداده زړه وویل :

«زه احمد ښه پیژنم او د ده دغیرت اندازه تر هر چا ما ته ښه معلومه ده ، احمد د ماتې پیغور ته هیڅکله غاړه نه ږدي - زما زوی به مرګ ومني خو ماتې نه . »

امام الهند حضرت شاه ولی الله محدث د هلوی فاروقی رحمة الله علیه (۱۱۱۴-۱۱۷۶ ه ق) په د وولسمه هجري سدی کي د هندوستان خوراستر عالم اولوی بزرګ وچه ۱۱۴۳ ه ق کال چې حجاز ته ولاړ هلته یې له شیخ ابوطاهر مدني شافعي څخه د طریقت د ټولو سلسلو د ارشاد اجازه ومونده - پخوا تردې یې

(۱) دلوی احمد شاه باباد مور زیارت د ارغنداو د رود پر لویدیزه غاړه بانډی دکوهک د غره په شمالي لمنه کې دی - یوه پخه ګومبته پر ولاړه ده ، پخوا د غه زیارت د شاوخوا مځکې د زرغونې انا د زیارت وقف وې ، اوس خلکو لاندې کړې دی او د ګومبتی ودانۍ هم نړیدلو ته نژدې ده ،

زرغونه انا په قام الکوزی پښتنه وه ، په الکوزو کې بیانسوزی وه .

د خپل پلار شیخ عبدالرحیم (۱۱۳۱ هـ ق بر) څخه خلافت و نه لی و عمر یې په تدریس او تالیف کې تیر سوی دی، د ده مؤلفات په هندوستان کې ډیر مشهور او منلي دي، ده د ۱۱٤٤ هـ ق کال د میانې (ذی القعدې) په یو ویشتمه د جمعې په شپه په مکه معظمه زاد الله شرفها کې خوب لیدلی و، شاه ولی الله په خپل یوه مؤلفه کې چې «فیوض الحرمین» نومیږي، ددغه خوب بیان داسې کړی دی:

« رأیتنی فی المنام قائم الزمان . . . .

ورأیت ان ملک الکفار قد استولی علی بلاد المسلمین ونهب اموالهم وسبا ذریتهم واظهر فی بلدة اجمیر شعائر الکفر وابطل شعائر الاسلام (والعیاذ بالله) فغضب الله تعالی علی اهل الارض غضباً شدیداً . . . .

وانا ساعتئذ فی جم غفیر من الناس منهم الروم، منهم الازابکه ومنهم العرب وبعضهم رکبان الابل وبعضهم فرسان وبعضهم مشاة علی اقدامهم اقرب ما رائت شبهاً بهولاء الحجاج یوم عرفة ورأیتهم غضبانا الغضبی وسألونی: ماذا حکم الله فی هذه الساعة ؟ قلت فک کل نظام .. قالوا الی متی؟ قلت الی ان ترونی قد سکت غضبی فجعلوا یتقاتلون بینهم و یضربون البهم فقتل منهم کثیر وانکسرت روئن ابلهم وشفاهها ثم انی تقدمت الی بلدة آخر بها واقتل اهلها فلتبعونی فی ذلک وکذالک خربنا بلدة بعد بلدة حتی وصلنا الاجمیر وقتلنا هنالک الکفار واستخلفاها منهم . . . .

ثم رأیت ملک الکفار یماشي مع ملک الاسلام فی نفر من المسلمین فامر ملک الاسلام فی اثنأ ذالک بذبحه نبطش به القوم وصرعوا به وذبحوه لبعکین فلما رائت الدم یخرج من اوداجه متدفقاً- قلت آلان نزلت الرحمة والسکینة، شملت من باشر القتال من المسلمین وصاروا مرحومین . « . . (۱)

ترجمه:

ما په خوب کې ولیدل چې د کفارو پاچاد مسلمانانو ملک ونیوه، مالونه یې

(۱) وګ دفیوض الحرمین ۸۹-۹۰ مخونه (تذکرة حضرت شاه ولی الله ٦۱-٦٥ مخونه)

ځني ولوتل ، اولادونه يې مينځياني اومريان کړل ، داجميـر پـه ښارکـي د کفـر
دودونه رواج سول اوداسلام د سوم له روا جه ولـو يدل او (عياذبـالله ) خـدای
د مځکې پرخلکو باندي سخت په قهرسو . . . . .

زه دغه وخت ديوې لويې ډلي په منځ کي وم ، په دغه ډله کی روميان ، از بـکان
اوعرب وو . ځنی يې پراسانوسپاره وو ځيني پراوښانو ، څو کـ پـلي رهـی وو . داسي
ښکاريدل لـکه دعرفې په ورځ چې حاجيان روان وي ـ خودوی ډيـر قهريـدلي او
پاريدلی وواوزه يې وپوښتيدلم : « په دغه اوس حال کي دخدای حکم څـه دی ؟»

ماورته وويل : «هر رازنظام چي وي له منځه يې يوسی»

دوی وويل : ترڅه وخته پوري ؟

ماورته وويل : ترهغوچی زماقهر سړيزي ؟

دوی پخپلو منځو کی جنګ پيل کړ ، بوده بې هم وژل ، ډيری ځنی ووژل سوه
ددوی داوښانو ککری ماتې سوې اوشونډي يې پرې سولې ، زه له دوی سره بـل
ښارته ولاړم دهغه ښارخلک موږ وژل ښارونه چې مخې ته راتلل هغه مـوورانـول
څواجميرته ورسيدلو هلته مو کفارووژل اوښارمو له دوی څخه خلا ص کـړ . .

بياماوليدل چي د کفارو پاچا داسلام له پاچاسره رهي دی اوشاوخـوا تـه يـې
مسلمانان روان دي نابوبره داسلام پاچا حکم و کـړدغـه د کافـرانو پاچا ووژنـئ ،
خلکو دغه کافر پاچا ونيوه ويې څملاوه اوپه چاره يې حلال کړ ، لـه ښار ګـوڅخه
يې ويني راخوتيدلي ماچي دوينو داريوته وکتل ترخوله يې ووتل اوس نورحمت
اوسکون نازل سوا و پر هغوهم دخدای رحمت راچـاپير سو چي په دغـه غزا کي يـې
برخه اخيستی وه .

دولی اللهی تحريک شرحه کوونکی حضرت مولانا عبيدالله سندهي رحمة الله
عليه(۱۳٦۳ هـ ق مړ) ددغه خوب په باب ويلي دي :

«دحضرت شاه ولی الله خوب ديرش کاله پس وخوت دمسلمانانو هغه پاچاچي په
دغه خوب کي وربښوول سوی دی غازی احمدشاه ابدالی وچې په ۱۱۷٤هـ ق کا ل يې

د پانی پت دستری سره بې په برکت د ډهلی سیاسي افق د مرهټو له خطره خوندي کړ.» (۱)

د مولانا عبیدالله سندهي تعبیر تو کي په ټوکی سهی دی حضرت شاه ولی الله چي کوم لیک لوي احمد شاه بابا ته دفیروزبخت په لاس له ډهلي څخه ایزلی اودی یې د مرهټو له خطره څخه د هندي مسلمانانو د خلاصون له پاره هندوستان ته ور بللی دی دد غه تعبیرو ملا تړ کوی ،

حضرت شاه ولی الله پخپل لیک کي احمدشاه بابا ته داسی کښلي دی :

در ملک هندوستان غلبهٔ کفار باین صورت است که در بیان آمد و ضعف مسلمانان باین صفت ـ درین زمانه پادشاهي که صاحب اقتدار وشوکت باشد و قادر بر شکست لشکر کفار دوراندیش جنگی آزما غیر از ملازمان آنحضرت موجود نیست ، لاجرم بر آنحضرت فرض عین است قصد هندوستان کردن و تسلط کفار مرهته برهم زدن وضعفای مسلمین را که در دست کفار اسیر اند خلاص فرمودن اگر غلبهٔ کفر معاذالله بهمین مرتبه ماند مسلمانان اسلام فراموش کنند وباندکي از زمان نگذرد که قومي شوند که نه اسلام را دانند نه کفر را ـ این نیز بلای عظیم است که قدرت بر دفع آن بفضل ایزد منان غیر آنحضرت کسی رامیسر نیست.

ما بندگان آلهی رسول خدا صلی الله علیه وسلم شفیع آورده بنام خدای عزوجل سوال مینمائیم که همت بانهمت را بجانب جهاد کفار این نواحي مصروف فرمایند تا در پیش خدای عزوجل ثواب جمیل در نامه اعمال آنحضرت ثبت شود و در دیوان مجاهدین سبیل الله نام نامـي (تان) نوشته شود . . . . » (۲)

د حضرت شاه ولی الله رحمة الله علیه غونـدي معاصر روحانی شخصیت په پورتنی ایک کی موږ ولوستل چی دی زموږ لوی احمدشاه ابدالي د دوراندیش او جنګیالي په صفت یادوی او د کفارو له بنداو مریی تو به څخه د هندوستان د ضعیفانو

(۱) وګ. شاه ولی الله اوران کی سیاسی تحریک (د مولانا عبیدالله سندهی تالیف) ۵۷ مخ لاهور چاپ ۱۹۴۵

(۲) وګ. شاه ولی الله دهلوی کی سیاسی مکتوبات (د خلیق احمد نظامی تالیف) ۱۱-۱۲ مخونه ، دهلی چاپ ۱۹۶۹

خلاصون یواځې دده له لاسه پوره بولي، د دغه کارداجرا له پاره دخدای رویونه ورته نیسی اوحضرت رسول‌الله علیه وسلم شفیع کوي .

دلوی احمد شاه باباد زمانی بل ستر بزرگ اولوی ملا بی تمی اوبی‌ریاعارف حضرت میافقیرالله جلال‌آبادی ثم الشکارپوری (۱۱۹۵ هـ قمر) دی(۱) میاصاحب له غازی بابا سره مکاتبه درلوده دمیا فقیرالله دمکتوبات‌او وپنځوسم لیک دلوی احمدشاه په عنوان لیکلی سوی او په هغه کې دې بې تمې او بی ریا عارف ده ته داسې خطاب کړی دی:

«مطاع الاکمل والسلطان الاورع الاکرم الاعدل ملوك الاسلام، مکرم العلما والصلحاؤ سس اساس الکرم والکرما، ممهد اصوال العدل ما طو، مصو العطا، المنصوب لاعلاء کلمة الدین، معزالاسلام والمسلمین عمدة خوا قین الزمان وصفوة سلاطین الدوران خلدالله ظلاله .....»(۲) موږ وینوچې میاصاحب رحمة‌الله علیه احمد شاه (دخپلی زمانې) داسلام پر پاچهانو کې ډیر عادل او ډیر پرهیزګاره بللی دی اودایې هم ورته لیکلی دی چې ته دکلمې دلوړتیاله پاره پاچاکړه شوی یی، اسلام اومسلمانانو پر تا عزت موندلی دی ته یې چې علما اونیکان نازوې، ته یې چې دبخښښونو بارانونه اروې تادسخاتاداوینې دی او . . . .

دمیافقیرالله رحمة‌الله علیه داسرنامه ځکه ډیر ارزښت لري چې میاصاحب دخپلی زمانې لری عارف‌اوبې تمې‌بې ریابزرګ و، زماپه خیال دغه ستاینه د غوره مالی له کبله کړه تیاشخه پاکه ده اوتو زنه هیله یې سبب نه دی .

---

(۱) دمیاصاحب‌په‌باب‌دده‌دزمانی سندی مورخ علیشیر قانع په‌تحفة الکرام کی داسی کښلی دی : حاجی فقیرالله درین جا (شکارپور) مرجع انام‌می‌باشد و سلسلهٔ مشیخت را بافضمای غایت رسانیده الحق حالتی و فضیلتی نیک دارد، در اوامر و نواهی بجد سعی دارد و بفیض ظاهر وباطن گروه معتقد را می نوازد.» په کندهارکی دمیا فقیرالله رحمت الله علیه د طریقت سلسله ملا فرح الدین اخوند (۱۲٤ هق م) چلوله .

(۲) دا مکتوب تول په عربی ژبه دی.

میاصاحب رحمة الله علیه په یوه بل لیک کي زموږ لوی احمدشاه بابا ته د «اخص مظاهر اسماءآلهی مالک الملک ذی الجلال و الاکرام» خطاب کړی دی دلته هم د «اخص» کلمه دافعل التفضیل صیغه ده او دلوی خدای (ج) دپا چهی، جلال او اکرام مظهریې په ډیره خاصه توگه سره احمد شاه بابا ښوولی دی . (۱)

* * *

دلوی احمد شاه بابا دزمانې عالم اوشاعر دگردی کڅ اوسیدونکی میاشرف الکوزی دده په ستاینه اودپانی پت دسو بی په مبارکی کی یوه قصیده لري، ددغې قصیدې څوبیته دادي :

احمد شاهه !

ای چی بلبل د عطا تل په چمن ستا که چغار
رب دې تل تل دجزا گل په لمن ستا که نثار
خرخ دې دلمر وي همیش ستاسی دخواهش په مسیر
کښت دي دستورو وي تل ستاسی دآرزو په مدار
څوفلک ملک و ملک وی ته ملک اوسه دملک
نگه ازلطف وعطا یا شه په تا یوم قرار
ستادی رحمت وی درب تل په حفاظت په مدد
ستا د همت برکت تندره دکفارو د دار
داچی اوس مړ د ظلم اور د توری ستاشه په آب
دا هغه اوروچی تول هند یې وریتیده په شرار
گله شه د هشت هسی وحشت د مرهتهی په سپاه
تخت یې یولورته راکوهم هسی بل لورته گولار

(۱) وگ. اتلسم مکتوب

نصرت وفتح و ظفر دا چې په تیغ ستا کړه حکیم
انتقام اخلی له قمقامه د صمصام په ګذار

فتح ونصرت چې پلاس ستاشه هزیمت شه غلیم
منهزم هم هسې کفار شوودګنګا په کنار

وایو تبریک د ظفر ستا په حضور ډیر په ادب
عرض وو ستا په جناب دا چې دي تل اوسه بهار

افتخار ډیر له حده تیر شه په دې فتحه د قام
انتصار زیات که داسلام په توره ستا کردګار

* * *

د کابل مشهور بزرګ شیخ سعدالدین احمد کابلی بره کی رحمة الله علیه (۱۱۴۰-۱۲۲۵هق) پ، ۱۱۷۳هق کال په مدینه منوره زادالله شرفها کی و، (۱) ده هلته یو تفسیر کابلی دی چې معدن لااسرارنومیږي، دی ددغه تفسیر په سریزه کی لوی احمد شاه بابا رحمة الله علیه داسی ستایی :

« شبی در زاویۀ خمول خویش در شهر جمادی الثانی سنۀ هجری یکهزار و یکصد و هفتادوسه، سال سیزدهم ازجلوس میمنت مأنوس شهنشاه سکندرجاه، دین پناه قاتل الکفرة والمبتدعین ناصر الاسلام والمسلمین احمد شاه درانی ایده الله تعالی بجنود الغیبیة واعز بالویة الادعیة وخلد ملکه بالفضل والامتنان واید حکمه بالعدل والاحسان بجهة ار بعین نشسته بودم » (۲)

دا دهغه سعدالدین احمد وینا ده چې نه کاله لیونی واوخلکو به دپای منارلیونی باله - شطحیات یی ویل اوددغو شطحیاتو له امله په کابل کی دلوی احمد شاه بابا

---

(۱) حضرت شیخ سعدالدین احمد د «یکمرد بزرګ» دمولف په قول دخلور دیرشو او د« کمالات مولا یی » دمولف په قول دشپږ دیرشو کتابو مولف دی ، زیارت یی دکابل په ده یحیی نومی کلی کی دی ، دیر خلک یی زیارت ته ورځی .

(۲) وګ. تفسیر معدن الاسرار، ٤ مخ، دلاهور چاپ، ۱۹۷۰ ع

په حکم بندی سوی هم و، بیا چې دسید زیورالدین پایمناری رحمة الله علیه (۱۱۵۱ هق شهید) دمشرزوی میراکبر(رح) په شفاعت له بنده خوشی سوحجاز ته ولاړ(۱)- داثنا اودعا یې هغه وخت کړې ده چې له احمد شاهی قلمرو څخه دیر لیري په مدینة النبی (ص) کی دنفس په تذکیه بوخت و اوچلی یې ګاللې - نو دلوی احمد شاه بابا د سیاست بیره ورسره وه اونه یې د ده له احسانه څخه څه تمه درلوده: ځکه نودسعد الدین احمد غوندی مست عارف له خولې، له بیري او تمی څخه پاکه ثنا اودعا ډیر اهمیت وړده .

* * *

دلوی احمد شاه بابا دزمانې شاعر « رحمت داوی » کله چې د دنیا بیوفایی غندي (۲) په دغه ترڅ کی دلوی احمد شاه بابا دمرګ یادونه داسی کوي:

په پوره اوه ویشت کالـه (۳)
د « احـمـد » وښـه دوران

* * *

په لـوټـ ن یې د ځان راغلل
د اجـل لـنـدي سپـاهیان (٤)
لـه فـانـی دنـیـایې راکښه
د احـمـد پـادشاه عـنـان
وبـتـا ته یې روان کـه
ګـوری، څـه عجب روان

(۱) وګ. کمالات مولا یی دامام الدین «درویش » تالیف ۵۸-۵۹-۶۰-۶۱-۶۲ مخونه (زما د کتابتون خطی نسخه )

(۲) رحمت داوی د کندهار دښار صفا او سیدو نکی و ، څه موده یی په کشمیر کی تیره کړیده ، د لیلی او مجنون مثنوی یی په کشمیر کی په ۱۲۱۰ هق کال په پښتو ژبه نظم کړیده.

(۳) د لوی احمد شاه بابا دپاچهی موده شلور میاشتی کم شپږ ویشت قمری کاله ده.

(٤) لندی Linday دکماندار معنا لری .

ښایسته عادل پاچا و
رب دې کړه جنت مکان
په جنت کې دې تل وي
باقي عمر جاودان
که په زړوز په دعا کیږي
دیدار ورکړه پاك منان
درست پښتون یې دعا کړي
له کمر و پرتابان
دا لمر ګوره په غروب سو
اوس پرځای یې فرزندان
د احمد نورالابصار دی
تیمور شاه دوران

* * *

په راستي سره ګویا دی
د رحمت داوي زبان (۱)

* * *

دلوی احمدشاه بابا د زماني نا متوترکمن شاعرمخدوم قلی فراقي (۱۱۴۶ه ق زوکړی ) د « عرش اعلایه » ترعنوان لاندي د احمد شا بابا یوه ستاینه لري چې د « مخدوم قلی فراغي نینګ شعرلرتوپلامی » په ۵۶۴ ـ ۵۶۵ مخو نوکې چاپ سویده . (۲)

---

(۱) وګ. درحمت داوی دیوان، پیښور چاپ، ۱۹۸۰ ع ( دهمیش خلیل په اهتمام)

(۲) مخدوم قلی فراقی داستراباد دکوکلان دسیمی اوسیدونکی و، داستراباد په ترکمنانو کی دوی قبیلی دیر شهرت لری یوه قبیله ئی کوکلان ده بله یموت مخدوم قلی دکوکلان قبیلی ګرګز پښی ته منسوب دی، داسترابادسیمه چی اوس دایران په شمال شرقی ګوټ کی پرته ده، دلوی احمدشاه بابا په وختو کی دلوی افغانستان پهقلمروکی داخله وه .

د د غه ترکمني شاعر دنظم شکلې سکښت قوشوق د ی چې موږ يې مربع بولو ددغه مربع څو بنده داد ي :

يـا احمد شا ه يـرده يـا ييـليپ چا و نـيگ
ا د نيـگ اسمـا ن كـيد رعـرشـن اعلا يـه
كلا ن نـو كـر ينگد يـر كـلمه يـن ا و يـنگ
بـه ييـكليك ز يـنه سين قيـل پـا يـه پـا يـه

* * *

منظو مه ترجمه :

خود به دي ستايمه هميش اې احمدشاه پښتونه!
د ی رسيد لـی ستا ښـه نو م تراسما نو نو پوري
ستاپه همت د ښنه چوغکې سول دوستان بازونه
څکه بر ی تل مچو ي ستا د تو غونو سيو ر ي

* * *

ا يـرا نـه غيلـچ ا و ر يـو و يـر ت سپـا هـی
بـا شينگ د ه بـر ك بو لـو ن د ولـت كلا هی
همـا يـو ن د ا غينـد ه شيـر لا ر نگ شا هـی
كـو يـا بـير نهنـگـ سن مـو ج د ر يـا يـه

* * *

منظو مه ترجمه :

د ی ستا لښکر دا چې ورځې پر ايران کښلې توري
دی ستاز ړه ور چې پر بدخواهو يی کړې بندی بوری
ته يې اتل د شنوز مر يو چې پر و چه گر زی
تـه يـې پا چا د نهنگا نو چې پـه يم کې ښوري

* * *

بیشه لر ینگ اونگتا یان شیری سن
رو مستان بینی سی دیو ینگ بیری سن
زال او غلی نینگ المازپیکان بیری سن
گشتا سپ او غلی دک بلبلی بلا یه -۱-

* * *

منظومه ترجمه

ته د زمري غوندي غرمیزې د ځنګلو په منځ کې
ته لکه د یب په ځغستا ځې دهسکو غرو په منځ کې
ته تر رستم په خطرناکو طو فا نو کي تیر سوې
ستا الما سین غشی همیش پرد ښمنا نوا و رې

* * *

پیشینگ ایران بولسه ، پشنتیگ توران دیر
دوست ایشینگه خوشوقت ، دشمنان حیران دیر
اقبا لینگ آچیلا را یشینگ دوران دیر
مرحمت نظر نیگ سا لسا نگ بو جا یه

* * *

منظومه ترجمه :

ته د ایران پالنه کړې، توران دي ولي هیر دی
توران وتا ته شهنشا هه، تر ایران در تیر دی
چې ستا الهلوري برخوردارشو ، بخت هغه ته ورځې
ته یو د رحم نظروکړه د توران پر او رې

* * *

---

(۱) په دغه بند کی هغی پیښی ته اشاره سویده چی د کهسان (او سنی اسلام کلا) په واوروکی د ۱۱٦٤ هق کال دژمی د طوفان له امله دلوی احمدشاه بابادلښکر څوزره تنه مره سول .

فراغی دیر رواج بیور سن دینی
شاه لرینګ شاه لري اسلا مینګ زیني
امر ینګ مطیع ات ایران زمیني
روز و شب نالیشیم بود یرخدایه !

منظومه ترجمه :

« فراقي وايي په رښتيا په تا اسلام غوړيږي
ته شهنشاه يې، مګر زړه دي درويشي ته کيږي
که دی د پښتو دمچيد لو شرف مومي ايران
زه به شپه ورځ تر قدم لاندې سپوږمۍ و ستوري

د مخدوم قلي فراقي د قوشوق منظومه پښتو ترجمه ما (رشاد) کړيده، هغه وخت چې ما دا ترجمه کوله - د ځینو تنګ چشمیو له امله چا ما ته د مخدومقلي اصلي متن رانه کړ، ما دغه ترجمه د مخدومقلي د قوشوق له دروسي ترجمې څخه کړيده چې د uaxtam kylu uzδpaHHble په نوم ټولګه کې چاپ او بيا يې ما په ګډه لیکلې وه.

* * *

په کابل ښار کې د شاه شهيد په نامه يو زيارت شته! دا زيارت د شهيدای صالحين او تپه مرنجان تر منځ پل مستان ته نژدې واقع دی کومه سیمه چې دغه زيارت پکښې شته، هغه هم د شاه شهيد په نامه يادیږي(۱) ، د شاه شهيد رحمة الله عليه د زيارت

(۱) د شاه شهيد نوم کنيه په مزارات شهر کابل (۶۹ مخ) کې «شاه ابو اسحاق ختلانی» لیکلی دی ، خو په خزينة الاسرار او نګارستان کشمير کې دده نوم «شاه اسحاق »کښلی دی په نګارستان کشمير کې دا هم زياته شوې ده چې دی پس له مرګه (په شاه شهيدان کابلي مشهور سو ، په خزينة الاسرار کې دده لقب «خواجه بزرګ» ښوولی سوی دی ، او دا يې هم زياته کړيده چې پس له مرګه په شهيد مشهور ه سو .

شاه شهيد په اوسني تاجيکستان کې د ختلان او سيدونکی و په ۸۲۶ ه ق کال د ګو د تيمور زوی شاهرخ (۸۰۷-۸۵۰ هق) په حکم په ختلان کې و وژل سو ، سر يې په بلخ کې ښخ دی ، د سر پوست يې د شاهرخ په حکم له پرو رو (بوسو) ډک کړه سو او کابل ته يې راولیږه ، دلته دغه د پرو رو ډک د سر پوستکي خاوروته سپارل سوی دی . وګ: (خزينة الاسرار )شاه اسحاق ختلانی په کبرويه طريقه کې د سيد علي همداني (۷۱۴- ۷۸۷ هق خليفه و

اوسني ودانی دلوی احمدشاه بابا دپاچهی په زمانه کي په ۱۱۸۳ هـ ق کال دياقوت خان خواجه سر اله‌خوا جوړه سوې ده(۲) ددغي ودانۍ پر ښندي باندي په پارسي ژبه يوه منظومه کښېښه سته ! ددغي کتيبې دسو بيتونه چي دلوی احمد شاه بابا په ستاينه کي دي ، دا دي :

چو احمد، شاه بر روی زمين شد
در اقليم ظفر مسندنشين شد
چو پارا در رکاب اشهب آورد
فلک گفتا که اقبالش قرين شد
بعصرش شير و بز يکجاخورد آب
که در علم نهيبش اينچنين شد
به غبرا وسما افتد تزلزل
چو از راه غضب چين بر جبين شد
عدوزير زره چون آب بنشست
چو در روز نبردش دل به کين شد
چو نور احمدی بر چهره دارد
ازان رونق ده اسلام و دين شد

* * *

حبيب الله خليل دپېښور اوسيدونکی چي پښتو ديوان يې په ۱۱۷۵ هق کال استنسا خ سوی دی ، پخپل ديوان کی دکندهار ، لوی احمدشاه بابا ، اشرف الوزراء شاه ولی خان او نور و خانانو په ستاينه کي يو اوږد نظم لري ، چي څو بيتونه يې دادي :

چي داخل په کندهار شوم
نا آرامه پر کرار شوم
په ثناد کرد گار شوم
آه ارمان دی کندهاره !

(۲) ددغي ودانی دجوړولو تاريخی ماده « با ظفر » ده چي دمقطع په وروستی نيم بيتی کی داسی راغلی ده : بگفتا « با ظفر » تاريخ اين شد

چې یې نوم احمد پادشاه دی
کل عالم دده نیکخواه دی
شاه ولی یې پشت پناه دی
آه ارمان دی کندهاره!

دده عمر دې درازوي
لهٔ ولیا نو دې په را زوي
په بري دی سرفراز وي
آه ارمان دی کندهاره!

خدای دې اوږد که سلطنت
تا به روز قیامت
له دښنو وهٔ فراعت
آه ارمان دی کندهاره!

خدای دی ورکړ دده بدان کا
چې غمو نه جا ودان کا
فریادونه ځان په ځان کا
آه ارمان دی کندهاره!

اې زما ربهٔ ذوالجلاله
پادشاهي یې کړې کماله
بې نقصانه بې زواله
آه ارمان دی کندهاره! (۱)

* * *

ملاعلم اپرید ی (۱۱۳۰ هـ ق زوکړی) په پښتوژبه کې ددیوان تښین شاعر دی. ده خپل دیوان په ۱۱٦٤ هـ ق کال ترتیب کړی دی - د ده ددیوان هغه خطی

(۱) وګ. دحبیب الله چاپی دیوان ۹۸-۹۹ مخونه، کابل چاپ ۱۳٦۰ ش

نسخه چي د دهلي په نیشنل ارکایوز کی خونـدي ده . ما کتلی او متأسفانه د لوی احمد شاه بابا په ستاینه کي می یې دا یو بیت ښیني را نقل کړی دی :

احمد شاه غوندی ملك یې پرځای ناست دی
چې ثانی یې پـه خپل دور سلطان نشته

* * *

حافظ الملك رحمت خان بړېڅی (۱۱۸۸ هـ ق شهید) د خلاصة الانساب پـه سر بزه کي چې د ۱۱۸۴ هـ ق کال تالیف دی د پښتانه ستر تولواك غازی احمد شاه بابا رحمة الله علیه په باب داسې لیکلی دی :

« درین عصر نیز چون فضل ذوالجلال شامل حال افغانان شده بمقتضیای توتی - الملك من تشاء در قوم افغانان مخصوصاً در قوم سره بن خاصه در ابدال پادشاه بـی بدل مالك هندوستان وایران وتوران سکندر جاه سلطان احمد شاه پادشاه غـازی در دران پیدا شده وتمامی ملك ایران وتوران وهندوستان در قبضه اقـتدار قـدرت اوست وهمگی اهل اطراف واکناف مطیع ومنقادا و.

رباعی

شهنشهی که جهان تازه شده بدورا نش
گرفـت روی زمین ظل نـور احسا نش
کجا ست در همه آفاق سروری امروز
که نیست گـردن او زیـر حکم فرما نش

حافظ الملك حافظ رحمت خان بریڅي چې د خلاصة الانساب لیکه په دغ وخت کی دی د شمالی هندوستان د روهیل کهند په بریلي کی میشت و ـ دغه بـریلۍ چـې بانس بریلی یې هم بولی د دغی نگا له روده څخه تقریباً پنځه او یا میله لری د شرق خواته پرته ده . (۱)

* * *

(۱) په شمالی هندوستان کی بله بریلی هم سته چې د امتیاز او تخصیص لپاره یی د لی بریلی بولي .

د تیرا او سیدو نکی ماشوخیل ورکزی قابل خان شاعر دد قایق الاخبار د منظومی پښتو ترجمی په سریزه کی لوی احمد شاه بابا خلیفة المسلمین بولی او داسی یی ستایی:

داکتاب «قابل» پښتو کړ
جوړ یې نظم په پښتو کړ
پادشاهی د احمد شاه ده
تر د کنه یې غوغا ده
په اسلام کی پهلوان دی
په کافراو مسلمان دی
د علماوو په عزت دی(۱)
هر ساعت یی په حرمت دی
احمدشاه و بخښی خدایه
ای قادر ره رهنمایه!
احمدشاه خدایه مقبول کړه
دغه خواست زما قبول کړه
عالمان د تیراه واړی
په زاری له خدای نه غواړی
پادشاهی د احمد شاه
برقرار لره پادشاه!
هم یې آس و سپاهی دواړه
په امان لری ته واړه
احمد شاه د ځمکی زوره!
خلیفه د کتاب ګوره (۲)

* * *

(۱) علما کلمه د لام په سکون لوستل کیږی .

(۲) وګ. پښتو ادب دارو ابنادعبد الحلیم اثر تالیف، ۳۳۰ مخ، د پیښور چاپ، ۱۳۷۰ لمریز ق

د میراسماعیل زوی میرعبدالکریم «نادم» چی د سدوزیو پاچهانو په دربار کی پیشخدمت و(۱) په خپل کتاب «افغان و کابل و بخارا و خیوه و خوقند خانانو احوال اوحکایات» کي دلوی احمدشا شخصیت داسی راپېژني (۲):

«احمد شاه الحق پادشاهی بود خلیق، عادل، سخی، رعیت پرور، ولی مشرب سلیم (الطبعه) حلیم وغریب نواز رحمة الله تعالی.»

* * *

حسان الهند غلام علی آزاد بلگرامی (۱۱۱٦-۱۲۰۰ هـ ق) په خزانه عامره (۱۰۹ مخ) کي د پانی پت د سوبی په ویاړ یوه غزله لری (۳) چي څو بیته یې دادی:

شاهی رسید و هندسیه فام راگرفت
ماهی طلوع کرد و سیر شام را گرفت
شکر خدا که زلك تصحیح حك نمود
نقش غلط که صفحهٔ ایام راگرفت
آخر ز تیغ خسرو غازی بریده شد
زلف ایاز گرد دل خود کام راگرفت
انجام کار غیر ندامت چه صرفه برد
فیلی که راه خانه احرام راگرفت
نازم زا قتدار سلیمان کامگار
ازدست دیو کشور اسلام را گرفت

---

(۱) دی دسدوزیو له دربارہ بخاراته ولاړ هلته دبخارا دپاچا امیر حیدر منغیت (۱۲۱۵-۱۲۴۲ هـ ق) په دربار کی نوکر سو؛ بیا د بخارا له سفیر سره قسطنطنیې ته ولاړ هلته په ۱۲۴٦ هـ ق ۱۸۳۰ع کال مړسو. (وګ. المنجد فی العلوم والادب، ۳۳۹ مخ)

(۲) ددغه کتاب یوه نسخه چی په ۱۲۹۰ هـ ق کال په استانبول کی چاپ شوی ده، ماپه المالته کی ولیدله. د سر څلور څلویښت مخه یې د افغانستان دپاچهانو په باب دی- ده په خپل کتاب کی دلوی احمد شاه بابا دپاچهی پیښی له ۱۱٦۱ څخه راپیل کړی دی.

(۳) حسان الهند آزاد بلگرامی په عربی او پارسی ژبو کی خوږ ژبی شاعرو په روضة الادبا کی یې دده څورلس مولفات راوړی دی، لکه د صحیح البخاری منظومه شرحه (عربی) چی ضوء الدراری نومیږی سبحة المرجان فی آثار هندوستان په غزلان الهند یدبیضا شمامة العنبر فی ما ورد فی الهند من سید البشر، ماثر الکرام تاریخ بلګرام، سرو آزاد، روضة الاولیا، عربی او پارسی دیوانونه او نور...
(وګ. تذکره علمای هند ۱۵٤ مخ)

تردې غزلي وروسته نوموړی آزادکېنلی دي :

«نظم این غزل محض بنابر انشراحی است که ازفتح جنود اسلام رونمود، نه بنابر مداحی - چه شاه درانی درهند(شمالی) بود ومن دردکن.»

* * *

دحفظ آلاداب ، قانون القرائت او مناقب غوثیه مؤلف رکن عالم یارکن الدین دمنیرغوري خیل پښتانه زوی (۱) دپېښور دهزارخانی اوسېدونکی په ۱۱۷۳ دق دلوی احمدشاه بابا غازي مېړانه ، غیرت اودعلم قدرښتیی ، دی ددین پهلوان داسلام رونق دسلطان محمودغزنوی ساری ، دپادشاهانو سراودافغانانو ننګیا لی ، د ابن منیر ددغه مثنوی عنوان دادی :

## درمدح مالک رقاب خلق الله
## احمد شاه(رح)

ترعنوان وروسته ابن منیر پښتانه قام ته داسی خطاب کوي :

خبرنه یی چی بلدور، دویم طورشه
پادشاهي دپښتنو پـه دکـن زورشـه
پادشاهي دچارجوغه احمدشاه شوله(۲)
دده مخ دکفر تښتـه پـه شاشـولـه
خاکرباې دهـردیارهـره جـوغـه ده
ددین ننګ بې عین دزړه په سرتغمه ده
خبرنه یې په دې ننګ په ډیره ځله(۳)
تردې میان ورغی راغی څوڅوځلـه

---

(۱) ابن منیر ځان غوری بولی، دپښتنو پښت پوهان (نسابان) مومند، داود زی ، خلیل ، څمکنی ، او زیران غوری پښتانه بولی اودغور یاخیلو په نامه یې هم یادوی په مناقب غوثیه کی یوځای ابن منیر ځان دولت یار بللی دی - مومند اوداودزی ددولت یارځانګی (فرعی)دی - دولت یار په غوریوپښتنو کی یوه درنه اولو یه پښه ده .

(۲) غازی ستر تواراك لوی احمدشاه بابا به پخپله خولی یا پګړی کی ځلور جوغې تومبلې ، ځکه نو چارجوغه باله کیده.

(۳) ځله (دلومړی څپې پرخ ج ) شرق

دوباره دعلم قدرلور په لورشه
جهل شه په سروهلو کوریې خورشه
یا په دې ننګ و محمود غزنوي
هغه فردوسي دې یې راغی مثنوی

. . . .

چې تر جده جنګریزی دی
احمد شاه غازی مزری دی
تیغ و توغ یې سردرومي
په باغیانو بری مومي

* * * *

چې له میانه یې جلوه کا تشه توره(1)
په جهان کې یې مړانه ده مشهوره
اندیښنه خپله دوړاندې قراول کا
خود په خود دی په کفارو چپاول کا

* * * *

چې ناره یې حیدري ده
هم رحمي ده هم قهری ده
داسلام د زړه مر هم دی
په کفارو شور دغم دی

* * * *

اوس یې بیادی دوباره دغزانیت
سرومال ښندي هرځای ددین په پت

---

(۱) میان = نیام - تیکی

په دکن يې لګولی شور ماشور دی
احمد شاه غازی نیولی ددین زور دی
تل له لاسه يې ددین په دښمن اور دی
په دوران يې جمعيت دکفر خور دی
وار په وار يې دولت اوسه په زیاتی کې
په کفارو مدام اوسه په بری کې
آوازې يې ډيرې لاړې په هر لورشه
په آوازې وارخطا کفار په ګورشه
خدای يې پاک لره مدام دنفس له خويه
کاروبار يې اوسه ټول دخدای له رويه
هم په خلکو يې جاری عدل وانصاف شه
دهر ملک په خوله جاري دده اوصاف شه
په دربار يې چند درچند وزي مړيزه
هم يې فيض وخائبانو ته رسيږه
الغرض دلې هورې يې دولت اوسه
دلته هلته يې داطور شوکت اوسه
الغرض که زموز قدرخه دآه وي
ننګيالی پادشاه ددين دې احمد شاه وي
زموز آددې شين لوګی وي پاس پرې چتر
سايبان دې وي ، دهرې بلا ستر
دی غمی ددين ، بزرګان يې حلقه اوسه
دی قمر ددين ، خانان يې هاله اوسه
توپخانه يې هميشه اوسه په شور کې
خزانه يې هميشه اوسه په زور کې

آوازه یې دلري او سه دروغه (۱)
دبري نامه په ده اوسه تل روغه

* * * *

خلکو جمعه پرد عاشې
په دعا داحمدشاه شي
احمد شاه پادشاه روان دی
په مهم دهندوستان دی
چي مهم یې خدای په خیر کا
داسفر یې خدای په خیر کا
چي نصیب یې فتحه کا ندي
کفر لاندي کادی یا ندي
حضرت پیر یې بدرگه شه
په دکن یې تیغ شغله شه
احمد شاه و هند ته تللی
و دکن ته پري و تللی
تللی دی، د دین په غم دی
کښېنیو تللی په تورتم دی
دعا کا نې یتیمانو
اې عاجز و مسکینانو!
حافظانو قرآن خوانو!
فاضلانو، زاهدانو!
سحر خیزو، شب بیدارو
اې ظاهر، باطن دیندارو!

---

(۱) لری=دبری ضد، شکست، ماته، مغلوبیت

اې له خپلې هستۍ تیر و ا
اې د عشق په لار د لیو ا
صادقانو ، مومنانو ا
خصوصاً اې افغانانو ا
چې احمد غالب په زورشي
دملك فتحه يې هر لورشی
چې کفار له مخه و وزي
په تښتخیال ورته پرې ووزي
خدای يې فتحه وظفر کړه
په کفاريې زور ور کړه
چې په کفر يې غوغا وي
په هر ځای يې حق وغاوي
په هرچا يې حق ده مرسته
خدای يې ساته له شکسته
لاس په تيغ کاندی یارانو ا
ای په توره با تورانو ا
څوك يې مرسته په لاس پښو کړي
څوك يې مرسته په آرزو کړي
دده مرسته په هر څه کړی
هم په خوله هم يې په زړه کړی
چې هر څوك مسلمانو ينه
په دې خیال به روان و ينه
ستا په فتحه به يې زړه وي
تل دعا به يې په خوله وي

دین په تابانديروښانشه
خاطر جمعه مومنان شه
لښکر یان دي سالم اوسه
درانیان دي غانم اوسه
درومه جنګ کړه مړ نیه
اې خاصه سر ښنیه!
که له توري درمانده یو
په دعا دي استاده یو
موږ لښکر ستاد دعا یو
په دعا همیش داستایو
احمدشاه درومه زړه وره!
هرګزمه کړه هیڅ خطره
دهند فتحه دي نصیب شه
فتحه ځای دي سراندیب شه
هند له کفره پر فتور شه
د ظلمت له لاسه چور شه
ښتني په بند بیو لی
مړ هټو په زور نتلی
ستاور تلوته انتظار کا
زاري ډیره په باربار کا
ددکن ښتون آرزو کا
آرزو ډیره ستا دورتلو کا
شه ګدای که دډهلی دی
په ورتلو دستا راضی دی

چې د هند بزرګان خواص دي
ستا و رتلو ته په اخلاص دي
که سرهند دی که لاهور دی
ستا په فتحه سر سرتور دی
له سکانو چې عذاب دی
په آزار دادرست پنجاب دی
پنجاب ډک په شور غوغا دی
لاس یې تا ته په دعا دی
خصوص تا ته دعا ډیره
صبح و شام که تر حد تیره
په اسرار وکې ما هر
حضرت جي غلام قادر
ستا د فتحې په غوښتو دی
په آرزو ستا د ورتلو دی
هر ساعت به یې لاسونه
ستا د فتحې په لارو ونه
په زاري به یې وې خدایه!
د هر چا مشکل کشا یه!
زر دا نمر له پاسه ځایه
راو له کښته یې بیا یه
چې په هند نزول برسات دی
د رحمت په ځای آفات دی
په دهشت د ده، له ورایه
تښتوه کفر له ځایه

په دکن يې تيغ بر ېښناکا

په چاشپه ، په چارښا کا

داپادشاه چي ذوالادب دی

ناست دشرعي په منصب دی

هسي شان په بري ستادی

خوشحال خرم په فتحه ستادی

چي دانمر له قبلي و راکړه

دتو بې ور په ده واکړه

دامغرب په تامشرق دی

هر وطن په تا مشفق دی

چي په فتحه اشارت دی

اول شاه ولايت دی

په تمام جهان سوره شوه (۱)

پس وعده شايد پوره شوه

چي د دين رونق داشاندی

په جهان کي نورتابان دی

دی شايد مقدمه وی

دمهدي عجب تحفه وي

اودستوردی دا رنگ وينه

چي نمر مخ کی نور لرينه

دروه نن ورځ بې وسواسه

کفر کازه له اساسه

---

(۱)سوره : ناره ، چيغه ، چغه

هسي نقل مي تر گوش دی

چي ويلى چ ذی هوش دی

چي مهم دهندوستان و

په «محمود» دغه فرمان و (۱)

له محموده چي وشنه

باقي ستا په ميراث شنه

تول د دين په پير ويږي

په ځان سدا حمدي يږي

ده مړانه ستا مشهوره

هم دي برق ده تشه توره

سرحلقه په دې زمان يې

ښه تحفه د دين ، ايمان يې

د مهدي ته سر کلام يې

ښه رونق د دين اسلام يې

په کفارو هيبت ناک شې

د غزا په لار چالاک شې

تل حامئ د اسلام اوسې

تر قيامته قيام اوسې

په دنيا کی تل سر اوسې

په عقبئ هم بهتر اوسې

له تا سرا خيسته خيال

---

(۱) مطلب دغزنی فاتح يمين الدوله غازی سلطان محمود رحمة الله عليه (۳۸۷ـ۴۲۱هق) دی چي په ۴۱۶ هق کال يی دهندوستان په گجرات کی دسو مناتهه لويه سوبه روزي شوې وه ـ دی ختيز لوري ته ترقنوجه پر مخ تللی وچی دگنگا د مشهور سيند پر غاره واقع دی

د هیچا مه شه مجال
اکثر خلک په‌دعاستا دي
مخامخ هم پسې شا دي
خصوصاً ابن منیر زه
زخمي‌ستادننګ په تیر زه
هرساعت در ته دعاکړم
ستا د فتحې تمنا کړم
ته‌مي‌خیال په‌زړه‌درون یې
تمام پوزه د پښتون یې
ته یې سرد پاد شاهانو
ننګیالی د افغانانو
ننګیالی ددین سلطان یې
نن په دین کې پهلوان یې
سر په‌پای‌د پاك رسول یې
تل په‌خیال دده مشغول یې
درست په‌خیال دده‌فاني‌یې
هم په ده باودانې یې
په تمام جسم د ده یې
رسم اسم هم د ده یې
چې په ننګ دده‌جلیل شوې
تمامي په‌ده‌بدیل شوې
ستا په ذات جلوه‌دده‌شوه
نامه ستا، نامه د ده شوه
چې په نام یې ملازم یې

خود په ذات دده قایم یې

چې ظاهر خود محمد شه

نوم دا ستا مشهور احمد شه

چې احمد وی خود به شاه وي

په جهان کې به پیشوا وي

چې موقوع په دې عنوان شه

خود موضوع احمد سلطان شه

د نومونو نوم یې سو دی

په نومونو کې بهتر دی

په نومونو کې عجب دی

له لفظینو مرکب دی

اول جزیې رفیع شان دی

چې خود دال په درست امکان دی

چې اول په امکان دال شه

د شاهی شان یې پامال شه

چې دی دی تمام مقصود شه

ستا وجود دده وجود شه

چې رته ته ځې رته دي ځان دی

سر په سر هغه تاوان دی

چې دي دزړه می اشتغال دی

اول ستا د دعا خیال دی

چې می ځان خپل ته دعاده

دعا ستا دعا زماده

چې احمد پادشاه د دین وی

خود تازه به رکن الدین وي

دابن منير دامثنوي دمناقب غوثيه په پای (په ۵۶-۵۷مخـو نو) کي کښېلي ده، دغه خطي نسخه دپښتو ټولني دپښتو اکاډيمي په کتابتون کـي خوندي ده ،خو احمد شاهي مثنوي يې دپښتو احمد شاهي شهنامې په پای کي چاپ سويده .

ابن منير دخپل يـو بل کتاب «قانون القرائت» په سر يزه کـې هـم د غازی اوی احمدشاه بابا په باب ثنا او دعا لري ،دا ستاينه ابن منير دپاني پت تر مشهوري سو بې وروسته داسی کړيده :

په حساب کی دري او يا زر سل کلونـه
دهجرت پـه داوخت و اوره پوره وونـه
څه خو سپک مي له خدا طره فکرزور کـه
پادشاهی داحمدشاه په د کنو شـور کـه
لکـه با ز پـه غـو تـه و رغی له پاسه
مکافا ت يې يو په سل وا خيست له لاسه
په مثال د رعدو بـرق پـوري غزهار شه
دکفارو په ځان تنـدر، کند هـارشه
خبر نه يی، په ديرنگ دد يـن پر پـت
کـا فـران يی کـړه لت پت پـه پانی پت(۸)

(۸)لکه دسلطان محمود دغازی رحمة الله عليه کارنامه چي دسومنا ته فتحه او د عثمانی سلطان محمد خان فاتح کارنامه چي د قسطنطنيې نيول دی دغه راز دلوی احمدشاه بابا غازی کار نامه دپانی پت په ميدان کی د مرهټو دجبار او طاغی قوت ماـ تول دي. دپانی پت غځه سو به د ۱۱۷٤ هـ ق کال دخلو رمی خور په شپږمه(۱٤ جنوری ۱۷٦۱ ع )دغازی لوی احمدشاه بابا او پښتنو په برخه سويده. مير غلام محمد غبار چی په افغانستان د رمسير تاريخ (۳٦۹ خ) کی د پانی پت داويخ سوبی ورځ (۱۷٦۱ ع کال دجولای شپاړسمه ښوولې ده څرگنده تيروتنه ده ،ځيرونکی بايد دغې تيروتنی *

بې مهیني، بې روزیني، بې مواجبه
زې گڼمه په خپل ځان دعــاواجبه
ننگیالی دی داســلام په کار پښتـون
ځکــه ښــکمه پــه دعـا دده متــون
سر بن دی د رانــی په جنگ کې زمــری
دکــرنی پــه بــاب دعـاکــوي غوری
خدای دي ورکازيات توفيق دعدل وداد
خولق، خاق اوسه لەده راضــی دل‌شـاد

دابن منیو دا ثنا اودعادمهیني، روز یني اومواجبو پــه هیله نەده‌اونەده د لوی احمد شاه بابا غازي له حضوره دغه امتیازات موندلی‌دی، ابن منیر فقط د دین‌د ننگی په خاطر مسلمانان اوپــه تیره بیا پښتانه دده دعا ته رابولی اودده لەپاره د خدای له لویه دربار‌ه‌څخه‌بری غواړی .

ددرباري شاعرانو ستاينې‌د «احسنه اکذبه» لەمقولې څخه وي؛ دوی په دې پسې‌نه گرزی چې‌ددوی وینا حقیقت تەڅومره نژدیکت لري، دوی‌په خپل ممدوح

---

• تەڅیروی. میر ذکاددغی‌سوبی‌تاریخی‌ماده «غینم پامال» وندلی دەچی دحمل په حساب ۱۱۷٤ څنی‌راوزی او یوه پښتانه د دغی لو یی سو بی تاریخی ماده دا ی مو ندلې‌ده :

چی کازئ « سه » وایی‌ره دا :

٦٥

«وي‌دي‌رحمت پـر احمدشاه»

۱۲۳۹

«سه» په ابجد حساب ٦٥ کیزی‌د «کازی» په حکم چی ٦٥ له۱۲۳۹ څخه وایستل‌سی ۱۱۷٤ پاتیزی.

پوري هغه صفتونه نښلوي چې په هغه کې يې څرك هم نه وي ، دوی د حسن بيان او لطف
ادا په ښکارېسې دفکر باز هري خواته الوزوی ، مبالغې هغه اوج ته رسوي چې دده
ممدوح د طبيعت تونخند ( دايرې ) باسي ، له دغه امله نو ما نه غوښتل چې زموږ دستر
تړواك لوی احمدشاه بابا په باب د درباري شاعرانو ستاينې هم په دغه مجموعه کې
راټولي کړم خود «خذماصفا ودع ماکدر» مقولې دې ته اړ ايستلم چې څو هغه ستاينې
دلته راوړم ، چې د بيغرضو ، بې تمو او بې لوږو شاعرانو او لې والو شعرونه اوليکې
هم د هغو ستاينو ملاتړ کوي .

په درباري شاعرانو کې تر ټولو لومړی سړی ميرزا عبدالهادی لاري موسوي
دی چې عشرت يې تخلص و ، دلوی احمدشاه بابا او تيمورشاه په دربارونو کې دانشاء
وظيفه دده په غاړه وه . دده ټانيپت په فتحنامه کې وايي دی :

مجاهد به يقين غازی صحابه خصال
سمی احمد مرسل سمه هلال رکاب(۱)
شهی که گوی تفاخر زخسروان برده
ازاو نبرده يکی از ملوك غير حساب
بروز جنگ برآيد چو تيغ او ز غلاف
کشد ز واهمه خورشيد سر بزير سحاب
بهم فگند سر و دست و پا ز فوج عدو
کشيد برخ ايشان چو تيغ عالمتاب
بروز معرکه اعداز تابش تيغش
چو عکس آئينه افتند برزمين بيتاب
شهی که جنبش تيغ سپاه او بجهان
چو طفل فتنه و آشوب و شوره کرد بخواب

(۱) سمی (دسين په زور دميم په زير ) همنام .
سمه (دسين او ميم په زور ونو) هغه آس چې په تګ نه ستړی کېږي .

بعهد دولتش آسودگی فراوان شد

بچارسوق جهان جز ستم نشد کمیاب

شهی که لشکریانش دل ملوك جهان

کنند گاه ستیزه بسیخ نیزه کباب

برای هدم اساس منافقان هنود

کشید لشکر غازی بهند چون سیلاب

ز بسکه کشته شد از هر طرف هنود دکن

بجای آب روان شد ز چشمها خوناب

ز بسکه از دم تیغ مجاهدان خون ریخت

فتاد زورق بود هنود در غرقاب

فگنند سر ز تنش تیغ و نیزه کرد بلند

بهند هر که شد از حکم نافذش سرتاب

عدو فتاد چو از پا خرد علانیه گفت :

ز «قتل مرهته» تاریخ فتح را دریاب (۱)

په ۱۱۷۷ هـ ق چې د لاشډ کلاود ا نيي سرته ورسیداه نوموړی میرزا هادی خان عشرت ددغې ودانی لپاره یوه قطعه نظم کړې او په هغه کې یې دلوی احمدشاه بابا عدل داسی ستایلی دی :

بدوران احمد شاه نیك بخت

که شاهی شرف یافت از نام او

خدیوی که بردر گهش بندگی

سلاطین عالم کنند آرزو

(۱) د «قتل مرهته» ابجدی ارزښت ۱۱۸۰ دی ، د « از پا فتاد » په قرینه دتخرجی عملیه باید وکړله سی او د «عدو» کلمې نښه یعنی و او چی شپږ ابجدی ارزښت لري څخني وايستل سی ، نو به ۱۱۷٤ پاته سی چی دپانی پټ دلویی سوبې کال دی.

گرفته زگلزار عدلش جهان

بسان بهشت برین رنگ و بو

شهي آنکه از پنجهٔ معدلت

کند چاك دلها سراسر رفو

کند مومیایئ عدلش درست

اگر رنگ بیند شکستی برو

په ۱۱۷۰ ه ق کال چې لوی احمدشاه بابا ډهلي ونیوه میرزا عبدلهادی عشرت یې فتحنامه داسي ویلې ده:

چو عزم کشور هندوستان کرد

شهنشاه جهان باعون و تائید

بهر گامی که زد یکران عزمش

زمین از مقدمش برخویش بالید

کشید از بهر تسخیر جهان تیغ

گرفت آفاق را ما نند خورشید

بچوگان خم شمشیر عزمش

سران سر کشان چون گوی غلطید

چو رو آورد افواجش به پیکار

سپاه دشمن از یک حمله پاشید

بدشمن برق تیغش پرتو افگند

چو آتش دید مو بر خویش پیچید

چونور دین احمد تافت بر هند

جهان پاك از ظلام کفر گردید

هزاران فتنه بیدار از این فتح

بعالم همچو چشم مست خوابید

چو بگرفت آن مما لک تیغ تیزش
به «عالمگیر» احسان کرد بخشید
زشاخ خامه کن گلچین مطلب
پی تاریخ فتحش دست امید
بگو آنگاه زروی دولت وجاه
زفتح هند عالمگیر گردید (۱)

* * *

ملاعبدالله دفتاوی احمدشاهي ليکوال چې دغازي لوی احمد شاه بابا په امر يې دغه فتاوی جوړه کړيده ، دکتاب دتصنيف سبب داسي بيانوي :

ددی وخت پادشاه دی
په مذهب کي حنفي دی
هم په توره بهادر دی
په دې کاربې بها، در دی
دين هرگوره ډير تاريک و
دغه مزی ډ ير باريک و
ده دنمر په شان روښان کړ
ده محکم په خوشوشان کړ
حرصې ډيردين په کاردی
ذوقې ډيردې روزگاردی
دا يې و فر مايل ماته
چي يو امر کوم تاته

---

(۱) «زفتح هند عالمگیر گردید» ۱۱۶۳ ، ابجدی ارزښت لری دتکملی په عملیه بايد «دولت» کلمی دال او د«جاه» کلمی جيم چي ددواړو ابجدی ارزښت اووه دی پر ۱۱۶۳ زيات کړل سی چي ۱۱۷۰ ګڼنی جوړ سی . په دغه معما کی له روی کلمی څخه مراد د دولت او جاه کلمو دسر توری دی .

لوی احمد شاه بابا په دغه پلا د ۱۱۷۰ هق کال د دريیمی خور په اوومه ددهلی ښار ته ننوتلی دی : دغه ورځ د۱۷۵۷ ع کال د جنوری له اته ويشتمی سره برابره ده.

ماوې وایه : «ای پادشاه!
زما شا هـه دیـن پـنا ه !
اې د لـیلـه د ا د لو
ای جلیله داجـلو
خـو اه د ه ستا حقه د د رو
ځـا رشـه درستـا تـرخبرو
تـه پـا د شا ه در دران یـې
عا لی رأ یه عا لی شا ن یـې
هـرهـغه چې ستاخطاب دی
هغه واړه په صوا ب د ی »
وې یې : «ډېرمین پردین یم
دافغان پـه کار غمګین یم
د اکتاب ورتـه پښتو کـړ ه
په تاحکم کوم ، هوکړه »
ماوې : «هرچی ستامأمول دی
په لیمو ز مـا قبو ل د ی»

. . . . .

مسمی پـه عبد ا لله یـم
دعاګوی دخپل پا د شاه یم
خدا یه! عمریې دراز کړې
دښمنان یې واړه زیر کړی
پهصورت یې تندرست کړی
غلیما نې واړه سست کړ ې

حافظ گل محمد مرغزي (۱۱۲۶ه ق زوکړي) که څه هم پښتوشهنامه د لوی احمدشاه باباغازی په حکم لیکلې ده، مگر داعارف شاعرچي دخپه کنو دمیاعمر (رح) (۱۱۹۰ ه ق مړ) صاحب مریداو دخپینو په قول خلیفه و، دخپلې انصاف پسندی په برکت له بې ځایو او بې حقیقتو مبالغوڅخه ځوندی پاته سوی دی او دده داخبره یې رښتیاکړیده چې ویلې یې دي:

شعرغه دی چې دردخیزوي
په رموزدعشق آمیز وي

. . . .

نه چې وې پکښې دروغ
د دروغ نشته فروغ

. . . .

مخامخ چې څوک که مدحه
په باطن که گویا ذبحه
رو برومه کړه ثنا
د تزویرمه زده بنا
که عادت دی دعوام
څوشا لي که پړي انام
ته بې وکړه په انصاف
که ډیریې په زړه کی صاف
شعرمه کوه په طمعه
گدازمه شه لکه شمعه (۱)

حافظ مرغزي په شهنامه کې غازي لوی احمدشاه باباته دخطاب په صیغه وايي:

---

۱- وگ: شهنامهٔ احمد شاه ابدالی، دپیښورچاپ، ۱۹۶۵.

ته غریب یتیم نواز یې
پـه کرم صاحب درازیې
په ژړا د بینوا
دا حسان لرې دوا
په اعزاز د علمایې
په بلند پایه سمایې
نظر ستا دی پر گدا
چې خپل عجز که ادا
ته رفیق د نیکو کار یې
له فاسقه تل ویزار یې
په تا فخر که جهان
خصوصاً تمام افغان
په تا ناز کاندي اسلام
خوشالي که ستا په نام
په درگاه کې د الله
که قبول شي زما آه
که مې خواست کې رب قبول
په حرمت د پاک رسول
ستا جوغه اوسه مدام
مطالب دي سه په دام
تمام ملک په تا روښان شه
لکه لمر په دا جهان شه
مبارك دي تاج افسر شه
په سایه دې هفت کشور شه

که مطلب لري مضمر

دعا کړه په سحر

له عدم شه پر وجود

چې ستا وی په کې بهبود

خانعلوم محمد غوث دلوی احمد شاه بابادالغنامې دشرحې په سریزه کې ویلي دي:

«وایي فقیر پر تقصیر چې مخاطب دی په خانعلوم سره

له جناب دپادشاه آخرالزمان چې ملقب دی له عالم غیبه په شاه دران سره

صد مه یې صدمه دلوی وغرونو ده

لطمه یې لطمه دلوی ودریابونو ده

شاهان دزمکې که په ډېر شوکت کې دي

زموږ له شاه ه کل په هیبت کې دي

صاحب دجود دی، هم دکرم دي

په پادشاهانو کې محتشم دی

که شاهان واړه دی داسمان ستوري

دی پکې نمودی انوارتږې اوري(۱).

دتاریخ احمدشاهي د مؤلف منشي محمودالحسیني زوی محمداسماعیل جامی

دلوی احمد شاه بابا په ستاینه کې وایي دی:

پادشاه دردران خسرو آفاق گیر

آن سمی احمد مرسل حبیب کردگار

گوهر بحر فتوت اختر برج شرف

شاه شاهان جهان احمد شه والاتبار

بود در اسلام چون صدیق اکبر در جهان

درعدالت مانده چون فاروق اعظم یادگار

---

(۱) وګ. داحمدشاه باباداشعاروپښتوشرحه، ۱۸ هم مخ، دکابل چاپ، ۱۳۵۶ ش

درحیا او شرم بوده مثل ذی النورین او

درسخاو درشجاعت همچو شیر کردگار

با وجود اشتغال اندر امور سطنت

می نمود اوقات صرف طاعت پروردگار

ذکر حق می کرد درخلوت وجلوت پادشاه

بوددایم درحضرهم درسفرشب زنده دار

کس ندیده کرده باشد اوتهجدرا قضا

زانکه بودآن شاه صاحب دل زایمان استوار

بدعت شاهان سابق شد بعهدش برطرف

خمرخانه بافواحش هم بیوتات قمار

کورنش را درزمان دولتش فرمود منع

چونکه این فعل است مخصوص نماز کردگار

پوست تخت ودلق درویشی وتاج سلطنت

داشتی درعهد خود شمشیر را با سبحه یار

هیچ کاری رانمی شدمرتکب بی حکم شرع

می نمودی احتراز ازهرحرام آن شهریار

باهنود وبافرنگی سالها شمشیر زد

داد قوت دین حق راآن خدیو بختیار

خلق همه آسوده شد درعهدآن جنت مکان

زانکه بود اوسایه ای ازرحمت پروردگار

خوان روزی پهن کردی آسمان دردوراو

تانماند خلق رابردل غمی ازروزگار

بود حکم اوزحد چین وماچین تادکن

بسته درخدمت کمرایران وتوران استوار

پادشاه ملک هندوستان نمودي بندگی

تاج بخشی کرد درایران و هند آن شهریار

والیان کشورتوران و دیگر مملکت

می نمودند از صدور حکمها بس افتخار

می رسیدند ایلچیان از کشور روم زنگ

دایم از بهر خوشامد نزد آن گیتی مدار

در زمان دولت او کبک باشه باز رام

بود گرگ از عدل شه با میش دایم سازگار

پادشاه نیکنامی مثل او عالم نداشت

نام نیکش ماند درعالم همیشه یادگار

کی تواند خامه کردن شرح وصف کشف او

بود درظاهر ودرباطن ولی آن شهریار

. . . . .

موز وینوچي شاعر په رانقل سوي وروستی بیت کی لوی احمد شاه بابا ولی الله بولي او د کشف و کرامت تښتن یې ښيي — ددغه شاعر پر رهم پخپل کتاب «تاریخ احمد شاه» کی دغازی بابا څو کرامته راوړي دی چي یوله هغو څخه د۱۱۷۴ ه ق کال لومړی خور په اتلسمه دسیلو نو په طغیانی حالت کي له مست اوباداسي و مونږ کي جمنا څخه د پښتنو لښکرو پوري ایستل دي ددې پېښي تفصیل منشی محمود الحسینی داسي راوړی دی :

بدرگاه خاقان کشورکشا

چو گردید معروض این ماجرا

سپه را پی هم روان یکسره

سوی باگپت کرد از شه دره

پس آن گاه باشوکت وفروشان

روان گشت خود نیز در آن مکان

قشون را بدریا ز بهر عبور

چو بود ست تشخیص معبر ضرور

فگندند در آب افیال را

به بینند تا صورت حال را

ز بس بود دریا پر از جزر و مد

نمی داد در هیچ جا آب قد

چو شد شاه را عرض این سر گذشت

که ایشان را آب از سر گذشت

کشوده زبان کرامت بیان

چنین کرد ارشاد با بندگان

کز ین مه چو تاریخ شد چارده

بحکم خدا میدهد آب ره

در آن روز افواج نصرت اثر

نمایند آسان ز دریا گذر

شنیدند چون بنده گان این سخن

ز فرمان روای زمین و زمن

تعجب کنان در تفکر شدند

همه غرق بحر تحیر شدند

نمودند با یکدگر گفتگو

که این حکم را کرد شاه از چه رو؟

هنوز اندرین ملک این داب نیست

زمان فرو رفتن آب نیست

عبور چنین لشکر بیعدد

درین وقت بسیار مشکل بود
مگر موسی از غیب گردد دلیل
که تا بگذراند ازین رود نیل
بهم داشتند این چنین قیل وقال
فرورفته درفکر امرمحال
همی کردگوش این سوال و جواب
جوابی نمی داد مالک رقاب
که تاروز موعودآمد پدید
زایام مه ، چارده در رسید
سحرگه روان شد چوسلطان مهر
برای عبور محیط سپهر
شه آبرو وبخشش دریا نوال
نشسته بر ، ایوش برعز وجلال
چوابر کرم روبدریا نمود
سوی آب چشم تعمق کشود
در آن ماهی چند شدآشکار
که بودند بر صورت شکل مار
پی هم نخستین زدازشست صاف
بران ماهیان تیرخارا شکاف
پس از صیدماهی وبعد از شکار
بفرمود کاین جاست جای گذار
بفرمان اشرف شنا آوران
شدند از برای تفحص روان
بجایی که ایماشد ازشهریار

مشخص نمودند راه گذار
چو معبور عیان شد باقبال شاه
ز دریا گذر کرد خیل و سپاه
باسانی از آب ارود گذشت
گویی که دریا بدل شد بدشت
چون این کشف برخلق شد آشکار
زشاه جهان خسرو کامگار
بروشن ضمیران صافی نژاد
ازین خرق عادت فزود اعتقاد
نمودند از باطن پاک وصاف
بکشف و کرامات شه اعتراف
قدم در طریق ارادت زدند
بدل طالب حسن خدمت شدند
هنود سیه روز هندوستان
که در تیره گی گشته گم قلب شان
چو فرعون وقومش زخبط وجنون
شمردند ازقسم سحر و فسون
کسی راکه ابلیس گمره کند
دم از طعن وانکار پاکان زند
ازل تا ابد خوار وگمره بود
گرفتار من یضلل الله بود
اگر بینند او معجزات رسول
کشاید زبان را بحرف فضول
درین عصر خاقان فرمان روا

بود بر زمین نائب مصطفی
جهان شد چو خورشید از وپر زنور
چه نقصان نه بیند اگر چشم کور
خدا یا ازین شاه دنیاو دین
بود تا سپهر زمان و زمین
چراغ هدایت فروزنده دار
دل اهل اسلام تابنده دار(۱)

دلوی احمدشاه بابا دکراماتو په باب د ده په زمانه کی یو کتاب کښلی سوی دي چي کرامات «احمدشاهٔ» نومیږی په دغه کتاب کي دغازی بابا ډیر کرامتونه کښلي دی یوله هغو څخه دادی :

«بعد از مراجعت سفر هندوستان قریب بدریای اتک خبر رسید که یکی از فرزندان عالیجاه وزیر اعظم ودستور معظم رخت هستي ازسر منزل دنیا بر بسته روانه عالم بقا گردیده از آنجا که نائرهٔ آتش محبت فرزند برق افگن خرمن صبر و شکیب است بی طاقت گردید .

بعض ازمقربان بارگاه صورت این واقعه را بعرض معتکفان پایهٔ سریر خلافت مصیر اعلی رسانیده که شاید ریزش تقاطر ابرنیسان رحمت که شامل حال مزارع خاص وعام است لمحه ای باطن فیض مواطن اقدس متوجه احوال عالی جاه وزیر اعظم گشته زورق وجودش ازگرداب ماتم رهاند. شاه والاجاه وزیر را بحضور طلبیده بلفظ گهر بار ارشاد فرمودند : مخلوق خدا راچاره جز تسلیم برضای درگاه واحد یکتانیست چنانچه فرزند دلبند مانیز که درمشهد مقدس بود سه روز شده که دهنورد سفر آخرت گردیده ... .(باید) دست استمداد بدامن صبر وشکیبا یی زده امور خودرا بخالق خود گذاشته طوطی زبان را بنوای خوش ادای شکر جناب باری تعالی مترنم داریم.

---

(۱) وګ. دتاریخ احمدشاهی دوهم ټوک، ۹۳۴ - ۹۳۷ مخونه ، طبع ماسکو، ۱۹۷٤

عالیجاه معظم له عرض نمود : خدا نکند حق تعالی بر عمر و دولت اقدس وشاهزادگان کامگار بیفزاید .

چون در آنوقت شاهزادگان عالیمقدار و سایر عاکفان حرم محترم علیه درارض مقدس تشریف داشتند و بسبب انقلاب ایام طائر خیال راراه آمدوشد آن ولایت میسر بود که خبری به حیزوقوع برسد، این گفتگوی حیرت افزای خاطر عالیجاه مشارالیه گردید که در از مشهد مقدس در عرض سه روز چه قسم خبر بخدمت اشرف رسیده تاریخ آن سخن را بر صفحهٔ کاغذی نوشته همواره منتظر صدق و کذب این خبرمي بود، تااینکه بعدار چندماه عرایض متواتر از نوباوه گان حدیقه سلطنت رسیدوتاریخ فوت شهزاده عالم وعالمیان مطابق تاریخی که وزیر صاحب تدبیر به خامهٔ تحریر در آورده بود بسمت ظهور پذیرفت . »

* * *

قاضی دل محمد خان چي دلوی احمدشاه باباپه امر په طب کي یولوی کتاب تالیف کری دی بحرالفوائد ورالفرائد احمدشاهی نومیزي، نوموړی قاضی صاحب په مقدمه کی دخپل مشوق نوم په دومره ادب اوله د غوصفاتو سره بیانوی :

«مروج دین مبین سیدالمرسلین، محیی آثار سنت خلفای راشدین رضوان الله تعالی علیهم اجمعین حامی قوانین ملک وملت وماحي قواعد ظلم وبدعت همنام سرور دوجهان مسمی نبی آخرالزمان امام لاعدل الاعلم الاکرم، افتخار سلاطین العرب والعجم . . . . احمدشاه پاد شاه غازی در درانی خلدالله ملکه و سلطانه» قاضی صاحب دلوی احمد شاه علم دوستی اوعالم پروری داسي بیانوی :

«در پرتو شعاع او (احمدشاه) ذرات عالم حیات تازه ونشاط بی اندازه یافته بحکم الناس علی دین ملوکهم هر یک درتحصیل علوم و کمالات کوشیده ورواج ور ونق علم وعلما بد رجه علیا رسیده . . . . مراحم شاهانه و اشفاق خسروانه بفرقه علماوفضلادر مجلس خاص ومحفل اختصاص مبذول است . . . . . »

دلوی احمدشاه بابا دزمانی یوه ایرانی شیعه مذهبه مولف رستم الحکما محمد ـ

هاشم (۱) درستم التواریخ په ۲۳۳ مخ کی لیکلی دی:

احمد شاه درانی دعالم، فضل اوکمال تښتنو، دصورت اوسیرت ښکلا یې پخپله زمانه کې ساری نه درلود، په شعر ډیرښه پو هیده، حلم اوحوصله یې خورا ډیره وه، دده دحلم اوځوانمردی په باب سید حسن صفوی نکل کاوه:

«په ۱۱۸۰ ه ق کال زه څوورځی په کندهار کی داحمد شاه درانی میلمه وم، یوه هرکاره (جاسوس) حال راوړی وچی په قاینکې یوه شیعه شاعر په یوه نظم کی دشیخینو (حضرت ابوبکر صدیق اوحضرت عمر رضی الله عنهما)، داهل سنتو دنورو مشرانو، پخپله داحمدشاه (درانی) او دده دکورنی ډیره سخته غندنه کړیده اودوی توړلوته یی خوراردو بدویلي دی دخدای پیښی ده زه داحمدشاه په دربار کي حاضروم چی هغه هجوه ویونکی شاعر یې دده دربار ته راوست، ښتانه پاچاورته وویل:

«هغه هجوه ووایه»

ددې حکم په اوریدلو سره د شاعر غړي وتښتیدل اوغ.وزارسو، د دربار سپاهیانو راپورته کړ، احمدشاه ورته و ویل:

«پرهجوه دي نه وژنم که دي شعرادبی ارزښت درلود انعام به هم درکړم.»

ددې خبري په اوریدلو په شاعر کي ساه وچو ښیدله، اوخپله هجویه قصیده یي وویله احمد شاه په شعرښه پوهیده، ادبی ذوق یې درلود د شاعر قصیده چی یې واوریده د هغې ادبی ارزښت یې وستایه، شاباسی یې ورته وو ایه پرخلات سربیره یي سل تومنه

(۱) رستم الحکما محمد هاشم د میرحسن خوش حکایت زوی او دمیرشمس الدین محمد کارخانه اقاسی لمسی دی، گرگین چی په ۱۱۱٤ ه ق کال دشاه حسین صفوی له خوا دکندهار نایب وتاکه سو میرشمس الدین دمستوفی په توگه ورسره و، دد غه شمس الدین مستوفی نیکه گنجعلی خان له ۱۰۳۱ څخه تر ۱۰۳٤ هق کاله پوری د فارس د صفوی پاچا لومړی شاه عباس (۹۹٦-۱۰۳۸ هق) له خوا دکندهار حاکم و.

روپی (؟) هم ورو بخښلې تردغو نازولو وروسته يې له شاعر څخه پوښتنه وکړله :

«زه و ته څو ديوي زماني خلک يو ، تاچې زما او زما کورني په باب څه ردو بدويلي دي اوريدلي به دي وي هرڅوک دښمنان لري او بدپسي وايي مګر د خلفاي راشدينو له زماني څخه يو زرو يو سل وڅو کاله تيرسوي دي ، ته دغو په بديو څنګه خبر سوې ؟»

شاعرله شرمندګۍ څخه سر کښيښو او چاوه او هيڅ يې ورته و نه ويل :

احمد شاه ورته وويل :

«دخدای لعنت دي پرتاوي ، د ښيخينو د ښکنځلو ايداد دي خدای در کړی. »

پسله دې عادل او حليم احمدشاه ، شاعر يوه سپاهي ته وسپاره چې خوندي يې قاين ته ورسوي او دقاين له حاکمه څخه يې درسيدلو خط راوړي. »

عربان وايي : الفضل ماشهدت بـه الاعدأ يعنی هغه فضيلت چې د ښمـنان شاهد ي ورکړي رښتياني فضيلت دی.

زه او س د دې بحث په پای کی دلوی احمدشاه بابا دزماني ديوه هندو پنډت کاشي راو هغه بيان را نقلوم(۱)چې په بهاو نامه کې يې ديوه عيني شاهد په توګه کښلي دی (۲) :

«شاه شاهان (احمد شاه) تهجد گذار بودند و بادل بيدار ثلثي ازشب مانده ، به تاديه وظايف وصلوة قيام داشت.»

---

(۱) پنډت کاشي راو څلويښت کاله دا وده په در بار کې منشي و ، له شجاع الدوله (۱۱۶۷-۱۱۸۸ هق ) سره دپاني پت په لويه غزا کې مل و ، خپل دسترګو ليدلي حالات او پيښې يې په بهاو نامه کې کښلي وی. (وګ ۱۹۴ مخ)

(۲ )دبهاو نامې لنډيز دعمادالسعادت په پای کې چاپ سوی دی ، انګريزي ترجمه ئی Jems Brown (ددهلی انګريز ريزيډنټ ) کړيده او د An account of the battle Panipat په نامه د کلکتې دآسيايي تحقيقاتو په دريم توک کې (له ۹۱ مخه څخه تر ۱۴۰ مخه پورې)په ۱۷۹۲ع کال لومړی وار چاپ شوی ده .

پر ننګ مړ خوشه مړ نه دی
د بې ننګه ژوند جفاده
لاس به وانه خلم له ننګه
که پر ننګ پاته دنیاده
(احمد شاه بابا)

# وروستني روايتونه:

ترجمه: شهنشاه احمدشاه دتهجدلمونځ کاوه، دشپې په وروستۍ دریمه کې به ویښ ولمونځونه او وظیفې بې کولې .

نوموړي کاشي راوددغه کتاب په بل ځای کې لیکلي دي:

«شاه جم جاه دل آگاهی داشت، باعفت وتقوی ربط کلی داشت واکثراعمال ازبزرگاندین کسب کرده بود. » (۱)

ترجمه:

احمدشاه ابدالي صاحبدله سړی وعفت او تقوی یې زیاته وه، په زیاترو کارو کې یې ددین دبزرگانو پیروي کوله .

(۱) وگ ۱۸۸ مخ .

* * *

دعمادالسعادت اونگارنامهٔ هند مؤلف غلام علی نقوی لکهنوی (۱۱۹۲ ه ق زوکړی) په عمادالسعادت(۱) کي کښلي دي:

«شاه والا جاه شاه شاهان احمد شاه ابدالی مرد میدان وصاحب عزم بود . . وی مدعی فقر بودو بر پوست می نشست. . . »

* * *

دسلطان التواریخ مؤلف نراین سنگ لکهنوی د غلام علی نقوی لیکنه کټ مټ پخپل تاریخ کي داسي نقل کړېده :

«احمد شاه ابدالي دفقر مدعي و، دتخت پرځای پرپوستکي کښیناست، دخدای دمخلوق له وینوتویولوڅخه یې ډده کوله، مرهټې بهاوچي د دکـن لښکري دده جنګ ته له دکنه راوبهولې، ده په پانی پت کي د زړه سوی له مخی هغه ته د سولي پیغام ورولیږه، مګرهغه مغرورد کني سپهسالار په جواب کي دده ایلچي ته وویل: «احمد شاه که تر کابله پوري تولي سیمي موږته راپریږدي سوله به وکړو .»

احمد شاه ابدالي چي داتریخ جواب واروېده ویې ویل:

«اوس نو په جنګ کي زموږ مسولیت نسته .» (۲)

* * *

حاجی جمعه بارکزی په کندهار کي دماشورنوي کلی اوسیدونکی ؤ ، دی په ۱۲۵۹ هق کال مړسوی دی، په پښتوژبه کي یود یوان څخني پاته و چي په ۱۳۶۰

---

(۱) وګ. عماد السعادت ۷۰ـ۷۹ـ۴۸ طبع نول کشور ۱۸۹۷ع

(۲) وګ. د خطي سلطان التواریخ ۱۶۴ مخ (دار وابناداستادبینوادکتب خانی)

٨ ق کال دپښتو ټولني (دافغانستان دعلوم‌وداکاډیمی دادبیاتودمدیریت)له خواپه کابل کي چاپ سوی دی .

حاجی جمعه پخپلواشعاروکي لوی احمد شاه بابا رحمةالله علیه د«باطن دار» په صفت ستایی. له باطن داره څخه دده مطلب صاحبدل اودباطني قوت اوقبول تښتن دی . دحاجی جمعه هغه بیتونه چي دلوی احمد شاه بابا ستاینه پکښی راغلي ده دادي :

چي نوبت داحمد شاه سو
مرني و، باطن دار
پرهرچابانديي نظرو
که غني وکه په خوار
سلسله‌یي پرجهان وه
په هیبت کي وکفار
نه پرچاازوروزیاتی و
ملك و ټوله پرقرار
چي رحلت بي له دنیا کړ
عالمونه سوه په خوار(۱)

حاجی جمعه یوازي شاعر نه و، دسلوك اوعرفان برخه یې هم درلوده، دی په نقشبندیه، مجددیه، بنوریه، طریقه کي دحضرت میاعبدالکریم حبیب زی پوپلزی رحمة الله علیه مرید وچي دکندهارپه ذاکرنومي کلي کي اوسیده (۲) دلوی احمد شاه بابا دعدل وعرفان په باب دده روایت یوازي دیوه شاعرحکایت نه دی، بلکه

(۱) وګ . دچاپی دیوان ۱۷۳ مخ .

(۲) حضرت میاعبدالکریم د دوهم میاعبدالحکیم کاکړ خلیفه او هغه دپوتی دمیاصاحب نورمحمدداوی خلیفه هغه‌دمناری‌دمیاصاحب‌نورمحمدنورزی خلیفه‌او هغه دمیاصاحب‌عبدالحکیم کاکړ خلیفه و .

دیوه داسي سالک او عارف درروایت په سترګه باید ورته وکتل سي چي ستاینه یې له هر رازمادي ککړتیا(لوثه) څخه پاکه وه .

* * *

افغاني فیلسوف حضرت، علامه سید جمال الدین رحمة الله علیه (۱۲۵٤-۱۳۱٤هق) خپل کتاب تتمة البیان فی تاریخ الافغان کي دلوی احمد شاه بابا دشخصت په باب داسي کښلي دي :

«این سلطان عظیم الشان (احمدشاه)طوریکه ما بیان کردیم از قبیله سدوزایی بود افغانان قبیله موصوفه راخیلي دوست می داشتند وبدیده اعتماد واعتقادبه اینان می نگریستند بعلاوه سلطان مذکورخیلي شجاع، باعزم وحزم صاحب فکر وتدبیر، خوش خلق باعفت، عادل، عالم ومصنف بود بارعیت برآفت، باعساکرخود برحمت گذاره می فرمود حتی باوجوداختلاف انساب ومسالک رعایاطوری دردل های شان محبت اوعموماً وخصوصاً جاگزین بودکه اورا از برگزیدگان خداوند تعالی شماریده پدر تمام افغانان می پنداشتند وازین باعث بلقب بابایاد می کنند ومشارالیه نظام سلطنت خودرا باساس محکم و ثابت استوارنموده بود وتا آخر حیات به شکوه وجلال حکومت کرد، علت اساسي ثبات حکومت وسلطنت اوحسن حکمت وتدبیرذاتی اوبوده است . . .»(۱)

* * *

عربي لیکوال علامه فرید وجدي په دائرة معارف قرن العشرین کي دلوی احمد شاه په باب لیکلي دي :

« احمد خان کان افغانی الاصل حکم البلاد بنفسه واوجد لهامن الثروة والرفاهیة مالم تره قبل ذالک ومات سنه ۱۷۷۲ع»(*).

---

(۱) وګ. حیات سیدجمال الدین افغان، دمولوی محمدامین خوګیانی تالیف، ۱۰٦-۱۰۷ مخونه، دکابل چاپ ۱۳۱۸، ه ش

* وګ . دافغانستان کلمه (۱/ ٤١٦ مخ ( دوهم چاپ ۱۳٥٦ ه ق)

ترجمه :

« احمدخان پښتون و ، دخپل ملک پاچاسو ، هغه ثروت و رفاهیت یې دخپل ملک خلکو ته مهیا کړچي تردغه پخوا یې نه ولیدلی . احمد شاه په ۱۷۷۲ع کال مړسو.»

نوموړي فرید وجدي د « الدولة العبدالیه» ترعنوان لاندي داحمد شاه باباد شخصیت په باب داسي لیکلي دي :

« احمد(شاه)العبدالی السد وزای کان شجاعاً ، حازماً ، عادلا، رحیماً ـ کان الافغانیون یعتبرونه اباً شفیقاً لهم فلقبوه ببابا ...»

ترجمه :

احمد شاه زړه ور، دوراند یش ، عادل اوزړه سواندی پاچاو ، پښتنودی دخوا خوږي پلار په شان ګاڼه اودبابالقب یې ورکړی و .

دولت یارجنګ میرزانصرالله خان فدایي په داستان ترکتازان هند (۳۵۸/٤ مخ ) کي د پاني پت دلویی غزا په باب نسبتاً په تفصیل ږغیدلی دی ـ په دغه ترځ کي د ه د لوی احمد شاه په باب داسي لیکلي دي :

« احمد شاه روزی نبود که از بیست فرسنګ کمترسواري کند ، در خوابګاه باافزار جنګ می خفت . . . . همیشه یک اسپ زین کرده برد ر چادر خرابګاهش بسته بود وفرمانش برهمه لشکریان خویش چنان روان بودکه هرچه می فرمود در بجاآور دنش یک دم دیري د ست نمیداد . . . . »

* * *

محمد حیات خان په خپل کتاب «حیات افغاني » کي دلوی احمد شاه بابا د نیک شهرت په باب دومره لیکلي دي:

«ددغه پاچا ( احمدشاه) ډیرشه اوحمیده صفات تراوسه پوري په افغانستان کي مشهوردی . »

محمد حیات خان خپل کتاب په ۱۲۸۱هـ ق کال لیکلی دی ، داوخت د لوی احمدشاه بابادمرګ پنځه کم سل کاله تیرسوي ووخو د احمد شاه د نیکو صفاتو ستاینه لاهغه خولونه وه لویدلې .

* * *

دلاهور دکوه نور اخبار مدیر مولوی سید محمد حسین اغلب موهانی په ۱۳۱۸ ه ق کال پخپل کتاب نیرنگ افغان (۲۹ مخ) کي لیکلي دي :

«احمد شاه د شیرسرخ بابا په جرګه کي خپلو رعیتو (درعیتو مشرانو) پخپله پاچهي وټاکه ، له دغه امله د ټول سرداران دده ملاتړو . احمد شاه پخپله هم مستقل مزاجه ، هوښیار ، زیارکښنه اومنصف سړی و ، د ټولو سردارانو ملا تړاود ده خپلو نیکو خویونو ددي سبب سوه چي دی دایشیا یولوی شهنشاه سي »

* * *

دعلامه البیروني د «آثار الباقیه عن قرون الخالیه » ژباړونکی او د تاریخ افغانستان مؤلف اعتضادالسلطنه علیقلی‌میرزا ایراني د لوی احمد شاه بابا په باب پخپل تاریخ افغانستان کی (په ۱۲۷۳ ه ق کال)لیکلي دي :

«گویند : احمد شاه اصلاً بلهوولعب وعیش وطرب مایل نبود وباکمال سطوت وشوکت وشجاعت همواره دم ازفقرونناميزد ، ذکرازکشف وکرامات میکرد وجماعت افغان‌رادرزمان حیات وپس ازوفات ببزرگی وکرامات وی اعتقاد زیاد است واثرپاسای اوست درهنگام سلام وبارعام طبقات انام بجهت احترام سرفرود نیاورند ، بلکه‌دست برسرگذارند . . . . »(۱)

نوموړی اعتضاد السلطنه د خپل تاریخ افغانستان په بل ځای کي لیکلي دي :

«احمد شاه مرد مد بروازرموز ملکداري باخبربود . . . .

په ۱۸۷۰ ع کال د Calcutta review په دوهم ټوك ٤۰ مخ کی دلوی احمدشاه په باب لیکلی دي :

(۱) وګ. داعتضا دالسلطنه تاریخ افغانستان ، ۳۷ مخ ، دتهران چاپ اعتضا دالسلطنه علیقلی مرزا قاچاری شهزاده‌نائب السلطنه دعباس میرزا(۱۲٤۹ ه قمر) زوی او د فارس د پاچا فتح علیشاه (۱۲۵۰ ه ق مر) لمسیو .

He (Ahmad shah) was the best Politician of his time, a man with on lnstinct for order and d!seipline , and loyal ln word and deed - - -

Ahmad Shah still is in all the countries he left to his suceessor remembered as agreat a wise and a good Prince and in his own land and amagst his own People he isregarded as the most glorious type of the natlon and as tho most finished model for dcralers.

ترجمه: احمد شاه پخپله زمانه کی لوی سیاستمدارو، ده دنظم اوادارې لـه پاره غریزی استعداد درلود، په وینا اوعمل کی صادق اوراستکاره و....

په هغوټولو ملکو کی چی ده نیولي اوبیا دهغوخاوندانوته یـې، خوشې کړي دي، دی دلوی، هوښیاراوښه پاچا په نامه یادیږی. اوپخپل ملک اوخپلوخلکو کی دقام دسراو رواوخورا سترو په ډول دده احترام کیږي اودی دحکمرانـی یوه بشپړه نمونه گڼله کیږي.

* * *

سلطان محمد خان «خالص» بارکزي پخپل کتاب تاریخ سلطانی(د۱۱۸۱هق تألیف) کی داوی احمد شاه بابا دشخصیت په باب داسی لیکلی دي :

« احمد شاه در اخلاق ثانی نداشت، با کمال حشمت دم از فقر می زد واز کمال علم شایان تحسین بود و درمورد آفرین - حلمش بمرتبه ای بود، گویند حین محاصرهٔ نیشاپور چون مردم سپاه تنگدست بغایت بودند باتفاق هم خزانهٔ شاهی را تاراج نمودنـد، صندوق دار ازبی ادبی سپاه بحضورش استغاثـه نمود اما جواب لاو نعم نشنود، لاجرم قـدم درمضمار گستاخـی نهاد احمد شاه پس از اطلاع اورا توبیخ نموده گفت :

ای ابله نادان! من نیزیـکی ازایشانم کـه باتفاق ایشان وضرب شمشیر آنان بدین دولت رسیده ام، چرا اوشان را شریـک دولت خود ندانم درهروقت کـه اوشان ازمال من کـه درحقیقت نتیجهٔ همت خود شان است چیزی مطالبه دارنـد و ن ندهم به نزد خالق وخلایق ملامت خواهم بود.

خوش آن پادشاهی که چون در گذشت
از و بازماند چنین سرگذشت (۱)

دپانی پت دسوبې په بحث کې نوموړي خالص لیکلی دي

«احمد شاه گفت که فتح بدین بزرگی بزورسرپنجهٔ این مشت خاك نه شده است بلکه ازمرحمت های یزدان پاك بود که اهل کفاررا از دست کفارسفاك خلاص نمود الحال شکر ایزد متعال برتمام اسلام بلکه بر کافهٔ انام فرض و قرض است...»(۲)

• • •

دافغانستان دپاچا سراج الملت والدین امیرحبیب الله خان (۱۳۱۹-۱۳۳۷ه ق) په پاچهۍ کې یو کم نوي کاله پخوادده تر پاملرنې لاندې دافغانستان یو تاریخ ولیکل سوچې «سراج التواریخ» نومیږي، ددغه تاریخ داوړی توك په دیرشم مخ کې دلوی احمد شاه بابا دخصلتونو په باب داسې کښلي دي :

«آن پادشاه خلدآرامگاه باحشمت ومکنت سلطنت ضعفاء را هرگز تحقیرنمیکرد واقویای پارسا را توقیرنموده، زیردستان زیردست آزار را توبیخ می نمود واحاد وافراد سپاه را با افسران صاحب جاه مساوی میدید وفعلی که بشریعت مذموم بود به خود واحدی نمی پسندید ، در طریقت هم سلك فقرا بود وعلما وسادات را نیك پرورش داده اوامرونواهی الهی را درمحل اجرا می نهاد وستم رسیدگان را بوجه پسندیده داد می داد وهمواره دراحیای حق وا ماتهٔ باطل مطا بق شریعت غرای محمدی اقدام می نمود وعلما وسادات را بافقرا درمجلس خویش بدست راست جای نشستن تعین کرده، اعیان واشراف را بدست چپ مقرر داشته، برای علماوسادات بقدر کفاف مؤنث ومعیشت وظیفه مقرر گردانیده ودیگر اینکه درتمام عمرش چه درملازمت وچه درسلطنت مرتکب ملاهی ومناهی نشده پاکی طینت او ضرب المثل افاغنه می باشد . همه علمای ملت گستاخانه (بدون خوف) فتوای

---

(۱) وگک تاریخ سلطانی ۱۴۷ مخ دبمبئ چاپ ۱۲۹۸ ه ق
(۲) وگک تاریخ سلطانی ۱۴۲ مخ

مو گي بنه دي په دنيا کي
نه چي څوك سي بيوفا
سر په تيغ پريکړي بنه دي
تر بې پته په دنيا
(احمد شاه بابا)

دشهادتونو او روايتونو په رڼا کي

# زموږ د زماني قضاوتونه:

احکام شریعت را درحضورش داده معاتب نمی شدند ،چنانچه روزی ازراه امتحان پارسایی وحقیقت گویی علمای دربار آلهٔ ازآلات سازخواسته بنواختن درآورده شد ، ملا ارادت معروف به ملاشاهو ویکی دیگر(ازعلما ) که حاضر بودند آواز سازدگداز گشته ازمجلس برخاستند وملا شاهوزبان حقیقت بیان کشوده بجرأت وجسارت گفت:

ای احمد ! این چه کاراست که مرتکب گشته ای ؟

اعلیحضرت احمد شاه درجواب گفت :

چه میشود وضرراین کار چیست ؟

وی بپاسخ گفت:

همین کلمه‌ای که گفتی ، گویا حرام را حلال شمردی ونتیجهٔ حرام وحلال شمردن کافرشدن است .این را گفته قدم به بیرون شدن نهاد .

اعلیحضرت احمد شاه گفت :

مباش واین امرشدن وآن گفتنم برای امتحان پاکدامنی علما بود نه اینکه حرام راحلال دانستن پس ملا ارادت گفت:

حالا که کارامتحان درمیان آمد ، دیگرحاضرمحفل پادشاهی نخواهم شد.

چنانچه (ملای موصوف) درکوه سرخ رفته منزوی گشت ...

* * *

ارواښاد قاضي عطاؤالله خان د پښتنو په تاريخ ( ۱/ ۱۳۰مخ ) کې د ستر تولواك لوی احمدشاه بابا د شخصيت روش ، اداري او ميراني په باب دا سې ليکلي دي .

« پادشاه ته په دربار کې تيتيدل او مځکه مچول هغه شرك گڼلو او حکم يې کړي وهر سړی دي پادشاه ته نيغ په تندي لاس زدی او په دي طريقه دي ورته سلا م کوی د حکومت دانتظام له پاره با قاعده قوانين لرل اونه تش داچي خلق به يې د هغه په تعميل مجبورول بلکه پخپله خپل ځان ، ټول امرا او وزرا ، خپل زامن او عزيزان يې د هغوقوانينو ماتحت گڼل ، د هغه قانون په نفاذ کې به د و پښته هر م ه سستي يا بې انصافي هغه ډير سخت جرم گڼلو ، فوځو ته له به تنخواه پخپله مخکې ور کوله اود ملك له مالي نه هغه يوه پيسه د خپلو ذاتي اخراجاتو له پاره نه اخيستله ، صرف د جنگونو په مال غنيمت باندي د هغه اودهغه د کورد خلکو گذاره وه ، داحمدشاه نوم د پاني پت د فتحې په وجه په تمام ايشيا کې اوچت شو اود پښتنو (د مړانې) نوم بيا د هندستان په گوټ گوټ کې خورشو ، هغه دو مره رحمدل وچې ترڅو پوري به د هغه سلطنت په خطره کې نه و ، نو د غټو غټو جرمونو مجرمان چې چا به د هغه پرخلاف څه جرم کړي وهم هغه به نه قتلول د قبايلو په منځ کې په اند روني جنگونو کې به هغه ديوه معمولي پښتانه په شان جرگې اوروغې کولې ، درعا يادرای عا مه نـه بـه هغه هروخت ځان پوره واقف ساتلو اود پښتنو له هري قبيلې سره به يې پـه ډيرې آزادی او بې کبری سلوك اوخبري کولې د پښتنو په ادبياتو کې هغه د ډيرقابليت خاوندو ، د اهغه ډيرشعرونه تراوسه پوري ديوه ديوان په شکل موجو ددي دعالمانو فاضلانواوقابلوخلکو هغه ډيرقدراوخاطر ، تواضع کولواودهغوي دآزادا نـه رائې

به يې ډېر احترام کولو ، په جنګ کې هغه بیشانه ډېر بهادر او د حوصلې خاوندو او اکثر به یې میدان جنګ کې دخپل فوج پخپله انتظام کولو استقلال د مزاج چې په پښتنو کې کوم بیا موندی شي ، په هغه (احمدشاه ) کې ډېر زیات موجودو ، هیڅ تکلیف او مصیبت اومشکل به هغه له خپل مقصد نه نشوا ړولای . »

* * *

زموږ د زمانې اسلامی فیلسوف او شاعر علامه اقبال لاهوري (۲۰ صفری ۱۳۵۷ هـ ق ، م) د ۱۹۳۳ ع کال د اکتوبر په دوهم ویشتمه (۳ رجب ۱۳۵۲ هـ ق = ۳۰ میزان ۱۳۱۲ هـ ق) د اعلیحضرت محمد نادرشاه غازی رحمة الله علیه (۱۳۰۸-۱۳۱۲ هـ ش) په بلنه کابل ته راغی ، څو ورځې چې یې دلته تیری کړلي ، دغزني له لاري کندهار ته ولاړ او هلته یې د کندهار په ستاینه کې د ابیتونه کندهار یا نوی ته وړاندې کړل :

قند ها ر آ ن کشور مینوسوا د
اهل دل را خاك اوخاك مراد
ر نگها ، بو ها ، هواها ، آ بها
آبها تا بند ه چون سیما ب ها
لا لـه ها درخلوت کـهسا رها
نا رها یخ پسته ا نـد رنا ر ها
کوی آن شهرست ما را کوی دوست
سار بان بر بند محمل سوی دوست

کله چې د غازي لوی احمدشا بابا رحمة علیه زیارت ته ولاړ ، هلته یې دده قبر ته دخطاب په توګه دابیتو نه ولوستل :

تر بت آ ن خسرو ر وشن ضمیر
ازضمیرش ملتی صورت پذیر
گنبد او ر ا حر م د ا ند سپهر
بافـروغ ازطوف اوسیمای مهر

مثل فاتح آن امیر صف شکن (۱)

سکه زد هم با قلیم سخن

ملتی را داد ذوق جستجو

قدسیان تسبیح خوان بر خاک او

از دل و دست گهرریزی که داشت

سلطنت ها بر دوبی پرواگذاشت

نکته سنج و عارف و شمشیر زن

روح پاکش با من آمد در سخن:

. . .

«پیش ما ای آشنای کوی دوست!

یک نفس بنشین که داری بوی دوست

ای خوشا آن کو از خودی آئینه ساخت

و اندران آئینه عالم را شناخت

پیر گردید این زمین و این سپهر

ماه کور از کور چشمی های مهر

گرمیٔ هنگامه ای می باید ش

تا نخستین رنگ و بو باز آیدش

بندهٔ مومن سرافیلی کند

بانگ او هر کهنه را برهم زند

ای ترا حق داد جان ناشکیب

تو ز سر ملک و دین داری نصیب

فاش گو با پور نادر فاش گو

باطن خود را بظاهر فاش گو.» (۲)

---

(۱) له فاتح څخه مراد دعثمانی ترکیې دوهم سلطان محمد خان (۸۵۵-۸۸۶هق) دی چې فاتح یې لقب و

(۲) وګک . مسافر ۴۱ - ۴۲ مخونه دکراچی چاپ ۱۹٦۸ ع

علامه اقبال «دحرکت بکاخ سلاطین مشرق» تر عنوان لاندي غازی لوی احمد شاه بابا دمردابدالی په نامه داسي ستايي :

مرد ابدالـي وجود ش آيتی
داد افغـان را اساس ملتی
آن شهيدان محبت را امام
آبروی هند و چين وروم وشام
نامش ازخورشيدومه تابنده تر
خاک قبرش ازمن وتوزنده تر
عشق رازی بود بر صحرا نهاد
تو ندانی، جان چه مشتاقانه داد؟(۳)

علامه اقبال په جاويدنامه کي د «ابدالی» ترعنوان لاندي دلوی احمدشاه بابا ملت جوړونه داسي بيانوي :

در نهاد ماتب وتاب از دل است
خاک را بيداری وخواب ازدل است
تن زمرگ دل دگرگون می شود
در مساماتش عرق خون می شود
از فساد دل بدن هيچ است هيچ
ديده بر دل بند ، جز بر دل مپيچ
آسيا يک پيکر آب وگل است
ملت افغان در آن پيکر دل است
از فساد او فساد آسيا
در کشاد او کشاد آسيا

(۳) وګ. جاويد نامه ۱۷۲ مخ

تا دل آزاد است آزاد است تن
ورنه کاهی در ره باد است تن
همچو تن پابند آئین است دل
مرده از کین زنده ازدین است دل
قوت از مقام وحدت است
وحدت ارمشهود گردد ملت است(٤)

علامه اقبال ددغه کتاب په یوه بل ځای کې بیاد «ابدالی» ترعنوان لاندی دغازی لوی احمد شاه بابا وطن دوستي او د خپل ملت مینه داسي وایي :

آن جوان کو سلطنت ها آفرید
باز در کوه وقفار خود رمید
آتشی در کوهسارش برفروخت
خوش عیار آمد برون، یا پاک سوخت(٥)

په پیام مشرق (مجله) کي د غازی لوی احمد شاه بابا رحمة الله علیه په ستاینه کي داخوارلس بیتونه راغلي دي :

مرحبا ای غازی جانبا ز ای شمشیر حق!
آیااس ظلمت کدې میں بن کی تو تنویر حق
هند کي هر ذره میں کنده تیرا افسانه هی
تیری دم سې غیرت فردوس یه ویرانه هی
بادۀ توحید سې پر، تیری دل کا جام تها
تیرا ساقی مصطفی تها میکده اسلام تها
هو گیین خم تیری آگې گردنیں اصنام کي
بن گئي پیکک قضا جنبش تری صمصام کي

---

(٤) (٥) وګ . جاوید نامه ١٧٦-١٧٧ مخونه .

ترجمه :

ښه راغلې اې تر سر تيره غازي ! اې دحق توري !

ته دې تورستان ته د حق رڼا راغلې يې

د هندوستان د خاوري په هره ذره کې ستاد مړاني افسانې کښلې دي

ستا په ساه دغه کنډواله د فردوس درخې ورګرزيدلې ده

ستا دزړه جام د توحيد له شرابو ډک و

ستا ساقي مصطفى واو ستا ميکده اسلام و

ستا دتوري مخې ته دبڼانو غاړي کږي سولې

ستا دتوري هر حرکت د قضا پواسطه و

* * *

د غازي لوی احمد شاه بابا د امتيازي خصوصياتو ترسرليکني لاندي د پيام- مشرق په مجله کې کښلي دي:

«غازی احمد شاه بابا ابدالي ميں چند امتيازی خصوصيات ہيں جن کی بنا پوهر سجهدار آدمي ان کا احترام کرتا تها-غازی محترم با وجود ا يک با عظمت پاد شاه هونی کي بې انتها ساده طبيعت اورا نکساری پسندتهی ان کا يه معمول تها که غريبوں کی محلوں ميں جا کر ان کی حالات دريافت کرتی اوراگران کو کويی شکايت هوتی تواس کاازاله کرتی، ان کی مزاج ميں غرور کا نام ونشان تک نه تها وهراد نا واعلی سی نهايت اخلاق ومحبت کيساته با ت چيت کرتی اوران دکه درد ميں شريک هوتی تهی، وه روزانه پانچ وقت مساجدميں جاتی اور غريب مسلمانانوں کی صف ميں کهری هو کرنماز پرهتی تهی ان کی دربار ميں کسی قسم کی روک تهوک نهيں تهي- جوشخص چاهتا آزادی کيساته حاضر هوتا اوراپنی حالات بيان کرتا تها.»

ترجمه :

په احمد شاه غازي کې خوداسې امتيازي خصوصيات ووچې دهغو په اغيزه

به د هر یوه او منصف سړی په زړه کي ده ځای درلود، احمد شاه غازی سره ددې

چې یو برېیالی او بریالی ستر تولواک ویو خاکساره او بې تکلفه پښتون هم و، دی

به پخپله د غریبانو او بیوزلو کورته ورتی او پر هغو به یې پوښتنه کوله. که به یې

څه اړه ومانده درلوده د هغو پوراینه به بی کوله او که به یې کوم شکا یت دراود

د هغو په د فع، کې به یې زیار یوست-د غازی احمد شاه بابا په طبیعت کي دغرور

او اوبی څوک نه و. درعیتو له هر واړه اوغت سره په خوږ رامینه ومحبت ږغیده

او په دردوغم کي به یې همدردی اوغم شریکي ورسره کړله-دی به پنځه وخته

لمانځه لره ماجت ته تیغ او هلته به له غریبو مسلمانانو سره په یوه صف کي څنګ

پرڅنګ دریدی، دده دربارته د هیڅ عارض ورتګه منعه نه و، هرچاچي به عرض

درلود پخپله به دربارته ورتیغ اوده ته به یې خپل عرض وراندی کاوه.

دپیام مشرق په مجله کی یی داحمدشاه بابا دشخصیت په باب داهم راوړی دی:

«غازی محترم (احمدشاه ابدالی) کا یه بهی معول تها که اپنی ذاتی آمدنی

میں سی چوتهایی رقم غریبوں، طالب العلموں، یتیموں اور بیوه عورتوں کو تقسیم

کرتی تهی ایک مرتبه ایسا اتفاق هوا که حضرت غازی محترم رات کی وقت

قندهار کی ایک بازار سی گذر رهی تهی، راستی میں آپ نی دیکها که ایک شخص

بیقرار هی اور قریب کې شکسته مکان میں سی رونی کی آواز آرهی هی.

دریافت کرنی پر مسافر نی کها که میں خراسان کا رهنی والا هوں میری سا ته

میری بیوي بهی هی جو حامله یې، وضع حمل کا وقت قریب هی اور میری پاس

ایک پیسه بهی نهیں هی غازی محترم نی اسی چالیس روپی مرحمت فرمایی

اور خود اپنی بیگم کو اس حامله عورت کی خدمت کیلئ مقرر کیا»

ترجمه:

احمد شاه ابدالی دخپلی آمدنی څلورمه برخه پر بیوزلو، طالبانو، یتیمانو او

کونډو ویشله.

یوه شپه احمدشاه غازی د کندهار په ښار کی پریوه بیوزلی نابلده پردیس

پیښ شو چی ما ینه یې دلنګون په شولو (دردونو) اخته وه اودی یې د خسمانې له

پاره ډېر ناكراره و ـ احمد شاه چې یې په حال خبر سو ، سر ي ته یې دستي ځلو ېښت روپۍ ورکړې او خپله ملکه یې دلته ګي دخدمت لـه پاره ورته واوستله.

* * *

ډیعقوب داداشي یو مضمون په ډان اخبار کې د «احمد شاه» ابـدالي تـر عنـوان لاندې خپور شوی دی ددغه مضمون تر عنوان لاندې چې په غټو توررو کومه جمله کښلې سوې ده پښتو ترجمه یې داده :

هغه ستر شخصیت چې د هند تاریخ یې بدل کړ .

نوموړي داداشي ددغې مقالې په متن کې یو ځای کښلي دي :

د پاني پت د جنګ د قهرمان په حیث احمدشاه دخپلو وطنوالو توره او مېړانه نړۍ ته وښووله ....

که څه هم احمدشاه یو زورور پاچاو ، خو شاهي تجمل او کـروفـر یې نه خوښیده له خپله درباره څخه یې د هند او ایران دشاهي دربارونو پر تکلفه آداب او رسوم لیري کړله او په یوه ومسنو نه سلام به کښنا ست کېده .

یوه ورځ په دهلي کې احمدشاه غازي خبرسو دده هغه خاص خبریال د پاني پت په غزاکې شهید شوی دی چې دده یې د مرهټه وو د بر یدخبر ورکړی و ، دستي دهغه شهید کورته د پاتاله پاره ورغی ـ کونډې ته یې څه شیان ورو بخښل او دده زوی یې د پښتانه امیر الامراء نجیب الـدوله یوسفزي په دفتر کې مقرر کړ.

* * *

زمونږ دزماني حاجي خانمیرخان «هلالي» په خپل کتاب «ننګیالي پښتانه» کې د پاني پت د قهرمان لوی احمدشاه بابا په باب ویـلي دي :

شګي ، خاوري ، غنې ، غر ، میدان د پاني پت
وایي پښتون قام او احـمد شاه باندې رحمت
ملاد کفر ماتـه کـړه ځـوانـانـو پښتنو
واخـلـئ مـشـرا نـو نـه سبـق د اې او سـبـو!

وروسته دخمکنو دحضرت میاعمر رحمة الله علیه (۱۱۹۰ هق مر) له خولې غازی باباته داسې وايي :

و وې میا عمر د څوکنو غوث الزمان :
«ای احمدشاه ته یې بریالی پرهرمیدان
ستا سینه کې زره دکځ یوغیرت دی دا یمان
ستا په مخ کې نشي دریدلای مرهتیان
ستا دسرد پاسه سوری دی دپاکځ رسول
ستاتر قدم لاندی وینم واړه دښمنان
ځه، په مخه ښه ستا اورا ستون شې بریالی
ستا په لاس شه فتحه د سیالی په هر جولان
ای ننګیال پښتونه! ستا غیرت دي په اسلام
ستا سره ملګری دی دخدای نیکځ بنده ګان
ای هلالی نشته داحمد په شان پښتون
چا چې د اسلام له پاره هرڅه کړه قربان

هلالي صاحب دجمهوریت په اخبارکي دغازی احمد شاه بابا ستاینه داسي کوي:

دی فخر د پښتون عالي مقام احمد شاه
هرچانه دی اوچت په ننګو نام احمد شاه
خیلونه قبیلې او پرګنې یوځای کول
له دوی نه جوړولو پښتون قام احمد شاه
پښتون دګمنامۍ کندي نه ده راوایستو
پښتون ته کړو ښکاره دعزت نام احمد شاه
تر اوسه په لرزان وینم میدان د پاني پت
په چغومرهتې وایي رام رام احمد شاه

پښتون په تا پښتون پادشاه همیش فخر کوي
زما هلالی دی په تا سلام احمد شاه

* * *

د پېښور بل ممتاز لیکوال ښاغلی امیر نواز جلیا په جمهوریت اخبار کې دلوی احمدشاه بابا د قهرمانی په باب یو مضمون لیکلی دي چي عنوان یې دی: « داسلام بربنډه توره احمدشاه ابدالی » دغه مضمون په پای کې وایي:

«حقیقت دادی چي په اسلام کې دفیصلې دوه جنګونه شوي دي یو جنګ دبدر بل جنګ دپانی پت. بدر کې که مسلمانانو شکست خوړلی وای نو په دنیا کې به اسلام پاتې نه وه. او که په پانی پت کې پښتنو ګټه نه وای کړې په هندوستان کې به اسلام نه و پاتې شوی. راځي چي نن داسلام هغي بربنډي توری او ننګیالی بابا ته سلام ولېږو او دپانی پت هغو لسو زرو پښتنو شهیدانو ته دجنت مبارکي ووایو.»

* * *

دهندوستان نامتو عالم او محقق علامه سید سلیمان ندوی لیکلي دي:

«احمدشاه ذاتاً لوی اولوالعزم او تجربه کاره فاتح سپهسالار و امالکه نور فاتحین په انتظام نه رسیده، دهندوستان مسلمانان دده ځکه ممنون دي چي مرهتیان یې له شمالي هندوستانه شړلی دي.»

داچي علامه ندوی لیکلي دی: «اما لکه نور فاتحین په انتظام نه رسیده» ددې سبب غالباً دا و چي دې دهند دنورو فاتحینو لکه ګردتیمور او افشار نادر غوندې ظالم، جبار او خداناترسه نه و، دده له خپلو لښکرو سره هم دیره نرمه رویه درلوده کیدای سي دده له دغې نرمې رویې څخه بدکله چابده ګټه اخیستې او انتظام به یې مات کړي وي مګر دی بې رحمه افشار نادر نه و چي دډهلی په قتل عام کې یې دلوی اختر په دریمه ورځ دشاه ولی الله رحمة الله علیه له وینا سره سم دچاندني چوک په لښتیو کې داوبو پرځای دسرو وینې وبهولې او د آئینه تاریخ نما په قول یې تر یو لک تنه زیات ووژل. سپین زیری آصف جاه نظام الملک لڅ سر، توره په غاړه

ځرولي په‌نبواتي ورته راغی اوورته ويې ويل:

کسی نمانده که‌دیگربه تیغ نازکشی
مگر که زنده کنی خلق‌را وباز کشی

اویوه دهلي‌وال شاعر ددې‌قتل عام په‌ باب‌ ‌کي ويل:

یارب کرا گذرشد درشهر ماکه‌باشد
هرخانه‌بزم‌ماتم، هرکوچه کربلا یی

زره سواندی‌احمدشاه‌گوډتیمور نه وچي ددهلی قتل عام يې له‌خلکو څخه داصفهان لوی اومشهور قتل‌عام هیر کړي اودهلي دجنګ په‌پیل‌کی پنځوس‌زره هندیان ترتیغ وکازی اوغیاث الدین علی بن جمال الاسلام په‌روزنامه غزوات هندوستان کی په‌ویاړ ولیکي:

«دردهلی چندان بقتل‌آمدندکه حکایت قتل‌عام اصفهان منسوخ شد وروز پنجشنبه همه اهل قلعه (میرټه) راازتیغ گذرانیده زن وفرزند آنانرا اسیرگرفته بمعمارات آتش انداختند وحصاررا ویران ساختند»

نن‌ورځ زره سواندي غازي بابا خورد تاريخ ظفرې په قول دوولس‌زره‌مرهتيان چې د پاني‌پت په جنګ کي‌نيول‌سوي‌ودشجاع الدوله‌په شفاعت خوشي کړل او یعقوب داداشي دمیرغلام محمد غباردغه‌شمیر دوه‌ویشت زره‌ته‌ښيي او دا دلښی داهم زیاتوي‌چي هریوه ته يې دخرڅ‌له پاره‌دوی دوي روپۍ اویوه یوه شړی هم ورکړله(۱)

گوډتمیور(۷۷۱_۸۰۷هق)دترکي ترنیولو وروسته‌دبالقانا توفاتح مجاهداعظم عثمانی خلفیه بایزید یلدرم‌رحمة‌الله‌علیه (۷۹۲_۸۰۵هـ ق) په قفس کي اچاوه څو

(۱) د پانی پت سوبه د۱۱۳۹ هـ ش کال د جدی په څلیرویشتمه پیښه ده او داد ژمی د څلی پېښی ورځی وی میر غلام محمد غبار چی د پا نی پت دسوبی تاریخ ۱۶ جولای ۱۷۶۱ ع لیکلی دی تیروتنه ده باید سهی اسی (وگک افغانستان در مسیر تاریخ ۳۶۹ مخ او احمدشاه بابا۲۷٤) په‌ځینو تاریخونو کی لیکلی دی‌چی دایوه‌یوه شړی او دوی دوی روپی شجاع الدوله‌ورکړی‌دي، ځینی کسان بیا دستورج مل جت نوم یادوی (؟)

احمدشاه بابا د مرهټیانو پېشوا ته دپاتالیک لیږه او په هغه کې یې دده د هغه ځوان زوی او هغه تورياليو توربره پر موګ د خواشینی اظهار کاوه چې داحمدشاه او دده دقام په قتل پسې یې لەدکنەتورې راایستلې وې او دکابل د نیولو تکل یې کړی و

به بین تفاوت ره از کجاست تا بکجا

* * *

اروانبادلوی استاد علامه عبدالحی حبیبی دلوی احمد شاه بابا نومي کتاب په سریزه کی لیکلي دي :

«زموږ دهیواد دیرلوی بریالی او دپښتنو د تاریخ رون ستوری اعلیحضرت لوی احمدشاه بابا دی» د دنیا تاریخ او پښتانه دی یو مشهور بریالي او ستر فاتح ګڼي، دی دخپلې تورې او مېړانی په سیوري کې دافغانستان اوسنی دولت تشکیل کړی دی ....

لوی احمد شاه بابا لکه د آسیا پخوانی فاتحین یوازې پخپلو جنګي تشکیلاتو اوسوقیاتو سره جهانګیری نه ده کړې، بلکه دده دخپلې تورې سره قلم او له خپلې سربازۍ اوتوریالیتوب سره علم، فضیلت، تقوی او ادب هم درلوده، ځکه نودی موږد آسیا یوازې نامتو اودلاور فاتح نه ګڼو، بلکه ددې خاورې یونکره ادیب، پوه عالم، عادل پاچا، اور شاعر، اجتماعی مصلح، دینی پیشوا او روحاني مقتدای هم بولو....

احمدشاه لکه دپښتنو اجتماعیاتو، سیاسیاتو او عمومي ژوند ونو ته چې اور او ر خدمتونه کړی دی، (دغسي یې) دپښتو علم وادب او شعر ته هم ګرانبها او دګټور ډک خدمتونه کړی دی .... »

* * *

په مرقع مشاهیر «۱٤۱مخ» کي د«احمدشاه ابدالي» ترعنوان لاندي یو مضمون خپور سوی دی په دغه مضمون کي دلوی احمدشاه بابا رحمة الله علیه پەباب داسي کښلي دي :

«احمدشاه ابدالی هغه ځوک (دی) چي دبراعظم ګي (هند و پاکستان) دتاریخ پانبي

یې بدلې کړې ، دې مړنی دپانی‌پت په میدان کې یوه داسې تاریخي فتحه‌حاصله کړیوه چې داسلام سترګی یې اوچتی کړي دي ، مغل سلطنت یې له‌بدرنګي تبا هی نه بچ‌که اوله ناپسند ونه‌یی وسائل .

دی یو دورا ندیشه ، قوم‌ودانی ، ساده ( بې لوثه ) پاکدامنه اودشهرت او طاقت له نشی نه پاك سړی و .

رحمت شه داسلام په دې ناموره جانباز....» (۱)

* * *

دپېښور په‌سیمه کی یوه مجله خپریده چې «رهبر» یې‌نوم و ، ددغی مجلې د «۱۹۵۷» کال دمی دیرویشتمی‌په ګڼه‌کی «دستر ابدالی» ترعنوان لاندي د ځیګر اپریدی یو نظم خپورسوی دې چې څو بند ونه یې‌دادي :

مرسته کړنه‌دکمزوریو ، ددې‌ستر انسان فطرت‌و
هسکول دغور ځید لوپرزید لویې صفت و
ورته خواست خوځکه کړی دمغلو سلطنت و
دغلیم په وینولت پت چې میدان دپانی‌پت و

پسی توری‌چې له‌میانه‌راوتلی ابدالی وې
اوپه‌پښو دپښتنو کی دمغل پرتې‌خودی وې

داورنګ په‌کورنی هم‌دې پښتون کړی‌احسان‌و
دافاتح ګوره‌هیوادته له‌دهلی بیرته روان و
دې ساوك دابدالی ته سکندر به هم حیران و
حاتم هم‌نکرونووړی سخاوت ته د افغا ن و

تخت یې و باخښه وبل ته دابخښنی میړنی وې
او په پښو دپښتنو کی د مغل پرتی خودی وې

(۱) دامرقع د ۱۹۶۶ ع کال د جون په میاشت په کرا چې کې چاپ سوی دی .

سوبه ده قربانولو د پښتون ملت په پت کې
پريشاني ترې بوګنيدلې ځان ځانى وې په هيبت کې

دا خورې ورې چې څومره قبيلې دي په ملت کې
تا بهوې چې بس کړى دى په ځنځير د جمعيت کې

داليکر د ننګيا لو وترې په تيښته بې ننګي وې
او په ښپو د پښتنو کې د مغل پرتې خو دى وې

* * *

اروانباد عبدالروف بېنوا (۱٤۰۵ه ق مړ) دافغانستان په نوميالیو (۳/ ۲۸۰ مخ)
کې د غازى بابا لوى احمدشاه په باب داسې ليکلي دى:

«احمدشاه بابا» يوسپڅيلى مسلمان، غيرتى پښتون اوعادل پاچا و، دکمزورو
بې لاس نيوه او د زورورو بې لاس-پېچه، په دينې او امرواو نواهيو او ملى ا و
پښتني دودهاودستور کلکت پابند و، مجرمينو ته ترء زا ور کوا وپه عفوه کولو ډير خوښ و.

د احمدشاه بابا شخصى ژوند هم ډير ساده اوله هر ډول تصنع او تجمل څخه
سپيڅلى و، ده هيڅکله داعتدال له حده تيرى نکاوه، د ده اخلاقى ښکيښود ده
د شخصيت په تکامل کې لويه اغيزه درلوده، ځکه بهنو افشار نادر ويل:

«من درايران وهندوستان وتوران مردى چون احمدخان حميده خصال و پسنديده
افعال نديده ام.»

* * *

اروانباد سيدرسول رسا (۱۹۱۰ع زوکړى) دپښور له وتلو شاعرانو او ليکوالو
څخه و، دى د احمدشاه ابدالى ترعنوان لاندي يوشعر لري چي په هغه کي يې
دمرهټو له منګولو څخه دهندوستاني مسلمانانو دنجات له پاره دغازى با با غور-
ځنګ داسي بيان کړى دى:

فخردوطن و، دپښتون مرد میدان دمو نبز
ځوان و، مسلمان و، دملث په غم غمجن افغان

. . . .

ږوه و چې وحدت زور لري ، قوت لري
دین دوحدت نوم دی، دوحدت توره طاقت لري
هندظلمتکده وه، دهندي مسلمان زورنه و
هو ځای مرهټیان ودکمزوری مسلم کورنه و
گورو هند مسلم ته، د دین وروردابدالی وخپور
داسي مسلم نه و، مرهټی چې په سر سپه رنه و

. . . .

جمعه یې غازیان کړورنې ځوان قوی اینکرجوړ که
هندیې مرهټانو ته دسرونمبو سقو جوړ که
یاد دی، پانی پت ته جنگې زوردابدالی ځلمی
ځنگ، بې تس نس کړل، یادیدل چې مرهټي ځلمي

* * *

په آریانا دائرة المعارف (۲/۱۵۵٤ مخ) کي دلوی احمد شاه بابا د شخصیت په باب داسې لیکلې دي «احمد شاه دافغانستان یو لوی پاچا او دمشرق یو قابل فاتح و.
احمدشاه دخپلو سیاسي اونظامي تجربو معتدلو اخلاقو او خدای ورکړی عقل په مرسته وکولای شوه چې دمشرتوب درنه وظیفه دملت او تاریخ په مقابل کي په ښه ډول سره اجرا کړي ، ده اداري توحید راوست او. . .»

* * *

زموږ دزماني لوی شاعر میرحیدر صاحبزاده چې د کندهار دارغنداو په «جوی لاهور» کې اوسیده او په ۱٤۰۷ هـ ق کال مړدی دلوی احمدشاه بابا په ستاینه

کي داحمدشاه بابا دخويونوترعنوان لاندي داسی ويلي دي :

چي زغيږي مورخين لهٔدي تولوا که
گا به کيږي معتدل شاه له اخلاقه
دپرپا بنداو امرومذهبي و
ولاړ تيگ پرعرف ، عاداتو پښتني و
چي اعمال افعال د ده ته کا ته کيږي
له شاهانو عادلانو حسابيږي
د ديندارو تولواك زښته ډير غيرت و
له غيرته يي هر ځای کي حکايت و
دخپل ملك په نيك ، مشفقه لکه پلار و
پرمجرمو ، پرظالمو ډير قهار و
دا تولواك و ډيرځوانمر دحق پيژندونکی
د احسان په هيڅ وخت نه و هيرونکی
له ښاغلي چاليدلي امساك نه و
دارو حرص او تکبر دتولواك نه و
په سخا او جوادي کی يی گورنه و
خو مسرف او مبذر لروبرنه و
ښه اعمال صالحه چي يي داشان دي
په همت او بزرگي يي شاهدان دي
اوا کثره پښتانه د دغه غولي
احمد شاه له اوليا و وشخه بولي

* * *

ارواښاد غلام محمد غبار (۱۳۵٦ ش مړ) په «احمد شاه بابا» نومی کتاب کی چی د۱۳۱۷ ش تاليف دی زموږ دسترغازی لوی احمد شاه بابا په باره کی ليکلی دي:

« وقتيکه احمدشاه بابا به تخت سلطنت افغانستان نشست يك نفر نظامي جنگديده

ویکمرد سیاسی تجربه اندوخته بود، احمدشاه ملت افغانستان را در حالی ملاقات کرد که با(وجود) اشتراك دراحساسات‌ودیانت ازحیث عدم‌اشتراك منافع متشتت (بودند) ولی به‌حکم فطرت وخصایص ملی مستعد آزادی، جاه طلبی وافتخار وازنظر ضیق اقتصادی طالب ثروت بودندوهنوزنسیم جانفزای ایقاظ دورهٔ هوتکیه برپیشانی شان می‌وزید، لهذبالطبع آماده ومنتظر پیشواورهنمایی بودنداحمد شاه این وظیفه راهنمایی را قبول کرد والحق بد رستی ازعهدهٔ آن برآمد .

احمد شاه بابا درتماس نخستین وی باقوم مثل (یک) سیاستمدار قابلی که‌قدرت تعصبات مردم را به‌میل ونظریهٔ خوداستعمال می کنداحساسات جنگجویی، افتخار- طلبی، آزادی پرستی، حس حکمرانی ومنفعت دوستی افغانها راتحریک وقضیهٔدفاع ازوطن اسلامی، جنگ بامخالفین مذهب (ودین‌ومقدسات ونوامیس ملی)واغتنام ازممالک پرثروت راپیش کشید و باین وسیله قوای نهفته وخفتهٔ معنوی تمام طبقات ملت را بیدار وقدرتهای پراگنده قوم‌راجمع وبیک استقامت بحرکت انداخت پیشبرد نقشه های بزرگ ازهمه بیشتر محتاج تحریک احساسات عمومی است تشکیل یک قوه عسکری معظم‌ملی وشروع بجنگهای‌متوالی و متواتر باردیگر قوای‌نهانی ملت افغانستان را بیدار نمود و درنتیجه عقیده فتح وپیروزی نژاد افغان‌رانسبت به اجانب درقلوب قوم تقویه نمود.

احمد شاه بعد ازحرب وفتوحات، توسیع دائره ملیت افغانی‌رادرتمام‌ولایات متصرفه مد نظر گرفت ولهذا ملیت افغانی روز بروز کسب وسعت نمود، احمد شاه عدالت و مشورت رااساس کارهایش قرار داد وباین واسطه خوش بینی واعتماد عموم را جلب نموده بمحبت واعتماد قلوب مامورین ومنصبداران خودش راتصرف کرد. معهذا احمد شاه درمورد مخالفین این خط مشی‌وعناصر مضره آدم شدید البطش وقاهری بود، متمردین را بحکم قوت براه می‌انداخت

احمدشاه بخوبی توانست ازروحیه ملی و استعدادیکه درنتیجه اقتضاآت فطری وحوادث ماضی تهیه شده بود برای‌اعتلای مملکت‌استفاده کند این قدرت تشخیص واستفاده باصیت فتوحات بلند آوازه وطرز ادارهٔ داخلی وشهرت

مکارم اخلاق شخصی او یکجا شده تمام توده های افغانی را به تسلیم واعتماد نسبت باو وادار نمود. (۱)

لوی احمدشاه بابا دری پلا دهلی ته تللی دی لومړی وار په ۱۱۷۰ ه ق کال دوهم وار په ۱۱۷۳ ه ق دریم وار په ۱۱۷٤ ه ق کال.

په ۱۱۷۰ ه ق کال لوی احمد شاه بابا د دهلی د مغل پاچا دوهم عالمگیر (۱۱٦۷- ۱۱۷۳ ه ق) په بلنه د هلی ته ولاړ (۲) مغل پاچا غوښتله د لوی احمد شاه بابا دورتګ په برکت ځان دخپل ناسیاله وزیر غازی الدین عمادالملک له شره خلاص کړی غازی الدین عمادالملک هغه وزیر و چی تر دوهم عالمگیر دمخه د ۱۱٦۷ ه ق کال دبرات دمیاشتی په لسمه د دهلی مغل پاچا احمد شاه (دمحمد شاه زوی) ړوند کړی اومعزول کړی و، اود ۱۱۷۳ ه ق کال د دوهمی خور په اتمه یی پخپله دوهم عالمگیرهم ووازه اومحی الملة یی ددویم شاه جهان په نامه دده پرځای ددهلی پاچا کړ. (۳)

داپلا چي لوی احمد شاه بابا دهلی ته بي جنګ وجګړي ورغی، ددهلی تاج وتخت یې دوهم عالمګیر ته وباخښه . دی کندهار ته ځنی راغلی

دوهمه پلا چي په ۱۱۷۳ ه ق لوی احمد شاه بابا ددهلی شاوخواته ورسیده دبراری په میدان کي ددتاسیندهیا مرهته وژونکی اودمرهتو لښکرو ماتوونکی فاتح احمد شاه په دهلی کي دناسیاله غازی الدین عماد الملک مقرره کړی مغل پاچا محیی الملة پرخپله پاچهي پرینبوو فقط د دهلی قلعه داري بې یعقوب علی خان بامیزي ته وسپارله پخپله انوپ شهر ته ولاړ دریمه پلا چي دپانی پت تراوبي سوبي وروسته احمد شاه بابا د هلی ته ولاړی د دهلی پاچهي بې دنوموړي دوهم عالمگیر

(۱) وګک. احمد شاه بابا فصل هجدهم ۱۰۰- ۱۰٤ مخونه دکابل چاپ ۱۳۲۲ ش

(۲) د دغه بلن لیک متن د علی ګړ ه مسلم پوهنتون دتاریخ د څانګی په لکچرونوکی خلیق احمد نظامی رانقل کړی دی.

(۳) محیی الملة د محیی السنة زوی، د کام بخش لمسی، داورنگزیب عالمگیر (۱۰٦۸- ۱۱۱۸ ه ق) کړوسی و.

زوی دوهم شاه عالم (۱۱۷۳ - ۱۲۲۱ هـ ق) ته ور کړه - څکه چي پخپله شاه عالم په دهلی کې و، نو يې د شاه عالم د زوی میرزا جوان بخت نائب السلطنه مقرر کړ.

اروانښاد میر غلام محمد غبار د اوی احمد شاه بابا د نه تاج بخښی غندي او داسي ليکي :

«روش سیاسی احمد شاه تقاضامی نمود که سلطنت موجوده هند را برای حفظ منافع افغانی تقویه وحمایه نماید ، لهذا مصمم به تنبیه مخالفین اوگردید. هند- یها حق دارند اگر اظهار نارضامندی از ین رویهٔ احمد شاه نموده واورا جهت آنکه چرا سلطنت هندوستان را ازیک خانواده پوسیده ومحکوم بانقراض منتقل بیکدست قوتمند دیگری ننموده ملامت کنند. شاید سیاست احمد شاه افغان بادرنظر داشت اوضاع آنروزهٔ ولایات مشرقی افغانستان این رویه را درنظر اوالزام می نمود. بعلاوه فرود آوردن پادشاهی راازمقام سلطنت اش که خود به احمد شاه تسلیم شده بود، دورازفتوت می دانست مخصوصاً درحالیکه خود الحاق هندوستان را با افغانستان اساساً درنظر نداشت . . . (۱)

د مرحوم غبار د بیان په هغې تاج بخښۍ پوري اړه لري چې اوی احمد شاه بابا په ۱۱۷۰ هـ ق کال دوهم عالمگیر ته کړې ده. اروانښاد غبار د پاني پت ترسوبې وروسته په ۱۱۷٤ هـ ق کال دوهم شاه عالم ته د دهلی د تاج وتخت بخښل تر دي په تنده لهجه سره داسي غندي :

«احمد شاه باتحمل زحمت ونثارخون جوانان افغان وبا درنظرگرفتن نتیجهٔ خوفناک شکست احتمالی بادشمن خطرناک دولت هندوستان مقابل وبالآخر تاج درخشندهٔ هند راازکف مرهته ربوده ورایگان برسربی استحقاق گذاشته بود. چون نتیجهٔ مفید این جنگ نه عاید دولت هند شد نه افغانستان لهذا این جنگ عظیم یکی ازبیفایده ترین کارهای احمد شاه شمرده میشود ازدیگرطرف چون احمد شاه نمیتوانست درآن وقت خطرات آینده اروپایی هارادرهند پیش بینی کند

(٥) وګ احمد شاه بابا، ۲۳٤ مخ

لهذا ازعدم اتخاذتدابیراساسی معذور شمرده میشود . » (۱)

داو، په هندوستان کي دلوی احمد شاه بابا دتاج بخشی ردالعمل چي دبناغلی غبارپه ذهن کي یې کړی دی خود تعجب خبره داده چې په ایران کي دلوی احمد شاه بابا تاج بخشی ته په دغه نظرنه گوري، بنایی دی به رونـد شاهـرخ (دافشار نادرلمسی) زندیه اوقاجاریه قوتونو په مقابل کي مروچه بولي اوگمان به کوي چي شاهرخ په ړندوسترگو ددغوقوتونو موټ پیچلای سی په مشهد کي دتاج بخشی پیښه بناغلی غبارداسی بیانوي :

احمد شاه ازهرات به جام ولنگروازآنجا بمشهد کشید . . .

امرای بی انجام آن شهر شاهرخ نابینارابجنگ با احمد شاه واداشتند اوقلعه بندی اختیارنمود وجنگ شروع شد امااهالی شهرخ رابه تسلیم رای دادندواو (پس ازشش ماه محاصره) دراردوی احمد شاه حاضرومراتب اطاعت وانقیاد خودش راتقدیم نمود . احمد شاه چنان چه روش سیاسی او درین موردبودشهرخ رانوازش وازطرف خود به نائب الحکمگی ولایت مشهد مقررنمود . »(۲)

* * *

تورن ارکان حرب علی احمد جلالي په مطالعه تاریخ افغانستان ازنگاه عسکری (۲ ر ۲۵۱ مخ) کی دلوی احمد شاه بابا په باب ایکلی دی :

احمد شاه ملت خود را ازیک وضعیت نا بسامانی بمراحل بسیار عالی امپراتوری رسانید ودرطول زمامداری بیست وشش ساله خویش چنان تحولی رابوجود آورد که مسیر تاریخ افغانستان راتغیر داد او برای رسیدن باین مرام در بدومرحله

(۱) وگک احمد شاه بابا، ۲۸۰ مخ

(۲)وگک.احمدشاه‌بابا ۲۲۱ - ۲۲۲ مخونه - ړانده‌شاهرخ خان دمشهد نائب الحکومه نه باله، بلکی تحت الحمایه شاهی باله. دامطلب دده دمهر له دی سجعی څخه ښکاری

یافت از الطاف احمد پادشاه

شاهرخ برتخت شاهی تکیه گاه

وسایل وشرایط مناسبی ندا شت . وضع مملکت دراثرفتوت های متمادی که از پنج قرن باینطرف باحوال کشورروی داده بود فوق العاده بحرانی بشمارمیرفت وبوجود آوردن یک وضعیت مستقردران، مستلزم طرح پلان هاوپالیسی های مخصوصی بودکه احمد شاه باکفایت ذاتی خود ازآن بدرآمد ...

ستراتیژی احمد شاه بابا به اساس بوجود آوردن یک افغانستان قوی مقتدر ومستقرتنظیم میگردید. اوعقیده داشت که ازهمه اولترلازم است خاکهای افغانستان توحید شده وملت افغان درداخل یک حدود معین صاحب نفوذ، اقتدارووحدت نظام اداری مقتدری باشد . ازین جهت هدف اولین اومحافظهٔ افغانستان بود او بیادداشت که دولت غلزائی ها بعلتی دوام نکردکه آنها قبل ازتحکیم دولت ملی درداخل افغانستان وتامین شرایط سیاسی واقتصادی یک دولت درآن، بفتوحات خارجی پرداخته ومرکزثقل عملیات خودرا بدانجانقل کردند، درنتیجه تاثیرآنها بمراکزمتفرق ومتعددتقسیم شد وبهمین علت بحال منفردانه از بین برده شد .

احمد شاه بابا فتوحات زیادی درهند بعمل آورد ولی هیچگاه حاضرنشد آن رابطرزدایمی اشغال ومحافظه کند درحقیقت اواراده نداشت تخت دهلی ازآن او باشد . بلکه مقصد اوازفتوحات درهند ازیکطرف تامین منافع افغانهای هندی که بالای سیاست ملی اوتاثیرزیاد داشت وازجانب دیگررفع خطرات احتمالی بود که درآینده سرحدات کشورش راتحت تهدید قرارمی‌دادند، وی ازدهلی باآسانی می گذشت ولی بهیچ قیمتی حاضرنبود یک وجب خاک بلوچستان، هرات، نیشاپور پشاوروماودون النهررابکسی بگذارد . »

اروابناد غلام جیلانی جلالی د«نامه احمدشاد بابا بنام سلطان مصطفی ثالث عثمانی» په تعلیقاتو کی دتاج بخشه اومهربان احمدشاه بابا شخصیت داسی ښوولی دی:

« نظر به مطالعه تاریخ و تدقیق درحوادث زمان اعلیحضرت (احمدشاه) چنین بنظرمیرسدکه وی با وصف اینکه ازنوابغ حربی وسیاسی واداری وقت خودبودند درعین حال شخصی صافدل، یکروی ودارای اخلاق حمیده بودند واوعادت داشت

هروقت دستی ازدرصلح ودوستی ازجانب خصم بسوی او دراز شود، گرچه درعین مغلوبیت خصم و بعد از رسانیدن خسارات هم باشد آن دست را برخلاف روحیه فاتحین دیگر با غرور عقب نمی زد، بلکه آنرا بمحبت فشار می داد و بخواهشات خاطر خصم تا جائیکه امکان داشت لبیک می گفت.

اعلیحضرت احمدشاه بابا از همین خاصه صلح دوستی او بود که تاج و تخت دهلی را دودفعه بشاهان مغلوب و درمانده گورگانی هند بخشیدند (۱)

میرمنو (میر معین الملک) تورانی هنگامیکه ازطرف دربار دهلی والی لاهور بود حین وصول رایات قشون احمدشاهی با طراف لاهور تمرد ورزیده بجنگ بزرگی اقدام کرد و بعد از چهارماه محاربه و ستیزه از حضور اعلیحضرت احمد شاه امان خواست. شاهنشاه افغانستان فوراً ازتمام جرایم درگذشته وی را بحکمداری آن سامان باقی گذاشت (۲)

---

(۱) لوی احمد شاه بابا د دهلی تاج و تخت په ۱۱۷۰ هق کال دوهم عالمگیر (۱۱۶۷ ۱۱۷۳ هق) او په ۱۱۷٤ هق کال دنوموړی دوهم عالمگیر زوی دوهم شاه عالم (۱۱۷۳ ۱۲۲۱ هق) ته وباخښه.

(۲) دلاهور والی میرمنو (میر معین الملك) څو کاله دڅلور محال مالیه چی دکاله څورلس لکه روپی وه ورونه لیږله احمد شاه باباچی په ۱۱۶۵ هق کال دلاهور ښاوخوا ته راغی دی په جنګ ورووت ترماتی منلو وروسته چی دلوی احمد شاه حضور ته ورغی (دحسین شاهی تاریخ په قول) احمد شاه بابا پوښتنه څنی وکړله :

« ای توریالیه: که زه ستا په لاس کښیوتلی وای څه به دی را سره کړی وای؟
میرمنو جواب ورکړ :

« ککړی به می دی پری کړی او ددهلی دپاچا حضور ته به می استولی وای»
دحلم او حیاکان احمد شاه ورته ومسل اوویی فرمایل :
« اوس زه څه درسره کړم؟»
میرمنو ورته وویل :

« دپاچا له رحم څخه مجرمان د بخښنی هیله لری که رحم کوی ومی بخښه او که ظلم کوی دامی سر دی پری یی کړه. »

زړه سوانده احمد شاه دیو باخښه درستم هند لقب یی ورکړ او دزوی په نامه یی خطاب ورته وکړ او بیر ته یی دلاهور والی وتاکه.

هکذا نصیرخان حکمدار بلوچیستان جنگهای خونین رادرمستونگ وقلات براه انداخت و با علیحضرت احمد شاه بغی کرد ـ ولی همینکه نامبرده ازرویه خود اظهارندامت نمود وتسلیم گشت احمدشاه مهربان ازتمام جرایم اودرگذشته با خلعت واعزازدوباره بخانی بلوچیستان مقرر کرد (۱)

بهمین طورعلی مردان خان والی تون وطبس وعباس قلیخان بیات والی نیشاپورکه مدتی مراکزخویش را متجاسرانه درتحت محاصره قشون احمدشاهی دادند ودرپایان کشش و کوشش زیاد چاره جز تسلیم ندیدند هردوی شان بحضور اعلیحضرت احمد شاه حاضروشرف دستبوسی حاصل کردند وازحضورشهنشاه افغانستان فرمان عفوجرایم بنامهای شان صادرومردانگیهای آنانرا دراثنای محاصره بضد قشوش شاهی ابرازداده بودند ستودند .

هم چنین اعلیحضرت احمد شاه تاج بخش بعد ازتسخیرمشهد مقدس با شاهرخ نوهٔ نادرافشارازدرمدارا پیش آمدفقط بخطبه وسکه اکتفانموده حکمداری مشهد را بشاهرخ گذاشت .» (۲)

* * *

دایران متعصب سیاستمدار مهدي فرخ په تاریخ سیاسی افغانستان (۵۱مخ) کی دلوی احمدشاه با دشخصیت په باب داسی لیکلی دی :

« درانی احمدشاه یوزړه ور، هوډیالی، مدبر، احتیاط کاره اومال اندیشه سړی

(۱) نصیرخان بلوچ په ۱۱۷۳ ه ق کال احمد شاه بابا ته یاغی سوی دی ، په یادگار تاجپوشی خان قلات کی چی دا پیښه د ۱۱۷۱ هق کال گڼلی سویده ، ماته دتامل وړ ښکاري

(۲) شاهرخ په ۱۱۶۲ هق کال دخپلی عمه‌دزوی سیدمحمد متولی په حکم ړوند کړه سو ، سیدمحمدمتولی چی دسلیمان شاه په‌نامه دمشهد پاچا سوی و دیو سفملی له خواووژه سو .دسلیمان شاه تروژلو وروسته بیا ړوند شاهرخ دمشهد پاچا کړه سو ، د۱۱۶۲ کال په پای کی چی لوی احمد شاه بابا مشهد ونیوه شاهرخ ته یی بیر ته دمشهد واك وسپاره او داحمد شاهی دولت یو تحت الحمایه واکمن و ځکه نوشاهرخ پخپل مهرکی دا بیت کښلی و :

یافت از الطاف احمد پادشـــــاه
شاهـــرخ بـــر تخت شاهی تکیه‌گاه

ود افغانستان د پاچهي تاداوده‌ایښی دی ـ سپاهیانه خویونه‌یی وو ـ دفقردعوه یی هم درلوده ، له علما وواوفقیرانوسره یی په ډیره مینه اوادب رفتارکاوه پرزیرد ستانوخورا مهربان و . . . . »

* * *

اروانباد محمود خان بنګلوري (۱۹۶۰ ع مړ) پـه تاریخ سلطنت خداداد میسورکی په ډیرصراحت سره لیکلی دی چی په میسورکی دمیسورد خداداد سلطنت جوړیدل په پانی پت کی د احمدشاه دتوری صدقه ده ـ دده خپل الفاظ دادی :

« مرهټون کی شکست ۱۷۶۱ ع :

یه وه وقت تها که مرهټون کاینر اقبال احمد شاه ابدالی کی هاتهون میدان پانی پت مین ډوب چکاتها ، بالاجی باجی را واس صدمی سی انتقال کرګیا ، علاقه میسومین جس وقت یه خبرمیدان جنګ مین پهونچی توګوپال را وتمام فوج کو جمع کرکي سرا مین قلعه بند هوګیا اس وقت سی فایده اتهاکر حیدرعلی نی ان تمام علاقون پرقبضه کرلیا جو مرهټون کي زیرنګین آچکی تهی اس نمایان فتح وکامیابی کی بعد حیدرعلی سرنګا پټم واپس هوی . »

ترجمه :

په ۱۷۶۱ ع (۱۱۷۴ ه ق) کی مرهټوماته (په میسورکی) :

دمرهټوداماته هغه وخت وه چی په پانی پت کی د احمد شاه ابدالی پـه لاس د مرهټود بخت لمرولویده اود مرهټوپیشوا له دغه دوکه مړسو ، دمرهټوکوم فوج چی دمیسورله حید رعلی سره جنګیده مشریی ګوپال راوو ، ګوپال راوته دازغ د جنګ په میدان کی وررسید ه ، ده چی داواریدل خپل ټول فوجونه یی راټول کړل او په سرانومی کلا کی کلابند سو ، حیدرعلی (۱) له دغه فرصته ګټه

(۱) دمیسور لومړی مسلمان واکمن حیدرعلی خان (۱۱۷۳ - ۱۱۹۶ هق) . دمیسور دزمړی سلطان ټیپو شهید (۱۱۹۶ - ۱۲۱۳ هق) پلار دی . محمود خان بنګلوری ددوی دنسب په باب لیکلی دی :

« څیني کسان وایی دوی پښتانه دی . »

(وګ سلطنت خداداد میسور ۴۲ مخ) .

واخیستله او هغه ټولي سیمې یې بېرته ونیولې چې (په ۱۷۵۵ ع کال ) مرهټو څخه نیولې وې تردې سوبې وروسته حیدرعلي خپل مرکز سرنګاپټم ته ستون سو.

نوموړی محمود خان بنګلوری تردغه وروسته د کتاب په ۵۸۰ م. مخ کې زیاته کړیده :

«فطرتاً الله نې هرقوم کو آزاد پیدا کیااور آزادرکهنا چاهتی هی ، مګرجب وه اس کی اهل ثابت نهیں هوئي تو یه نعمت چین لیجاتی هی ، مګر اس نعمت کی چهیننی سې پهلي مهلت پر مهلت دیتی هی ، اور جب انسی فایده نهین اتهایا جاتا تو قدرت بهی اس کو اسی حالت میں چهوړ دیتی هی ، هندوون کو مسلمانون کې چهلې کی وقت مهلت پرمهلت دی ګئ - یه ګروه نهین سنبهلې ، مسلمانون کوان پر مسلط کردیاګیا اب مسلمانون کې باری آیی اور قدرت نې ان کو مهلت دینې شروع کې ، عالمګیر (اورنګزیب ) کې بعد (احمد شاه) ابدالي کې ذریعه مهلت دې ګي اور اس مهلت سی فایده اتهانې کیلئ وه سلطنت وجود مین آیی جس کانام تاریخ من سلطنت خدا داد میسور هی ، هند کیلئی خدا نې یه غیر مترقبه نعمت دې.»

ترجمه :

لوی خدای قومونه آزاد پیدا کړي دي او دایې هم خوښه ده چې آزاد وي ، خو کله چې قام ددې اهلیت و نه لري چې خپله آزادي وساتي نو دآزادی ، او خپلواکې نعمت څخې اخلي - مګر بیا هم دخپلواکې تر اخیستلو دمخه یو په بل پسې مهلتونه ورکوي ، قام چې له دغو مهلتونو څخه ګټه وانه خیستلای سي - نو یې دغسي پرېږدي ،

دمسلمانانو دحملو په وخت کې خدای هندوانو ته یو په بل پسې مهلتونه ورکړل ، خو دوی ځانونه اصلاح نه کړل مسلمانان یې پرې مسلط کړل او س دمسلمانانو وار راغلی دی ، خدای دوی ته هم مهلتونه پیل کړل او تر اورنګزیب عالمګیر ( ۱۰۶۸ - ۱۱۱۸ هـ ق) وروسته داحمدشاه ابدالی (۱۱۶۰ - ۱۱۸۶ هـ ق) په واسطه مسلمانانو ته مهلت ورکړ سو او له دغه مهلت څخه د ګټې اخیستلو په برکت دمیسور خداداده پاچهي منځ ته راغلله دهندستان له پاره دلوی احمد شاه بری یو داسې نعمت دی چې دهندستانیانو په خوا و خاطر کې نه و .

* * *

زموږ لوی احمد شاه بابا رحمة الله علیه په پنجاب کې څو واره له سکانو سره سخت جنګونه کړی او دوی یې کلک ځپلي ي، یو واري یې دسکانو دومره خلک ووژل چي سکان هغه ته «وده ګهلو ګره» وایی، دغه پنجابی نوم یا نحوی ترکیب دلوی قتل عام معنا لري، مګر زموږ د زمانې یو منصف سکهه مورخ د اکتر پوهاند ګهنډاسنګهه دلوی احمد شاه په باب داسي نظر لري :

I had been born and brought up in prejudiees against him and had heard of him only as a robber chief who swooped down upon India for plunder and carried away to Afghanistan tons of Indian gold and thousands of Hindu slaves, But the more I read of him, tho more impressed I became With trait of his greatness irresistibly presenting themselves to my mind. (1)

ترجمه :

زه په داسي چاپریال کي زوکړی او لوی سوی وم چي د احمد شاه سره یې تعصب درلود، ما دده په باب فقط دا اوریدلي وچي دی یو لوټمار مشر وپر هندوستا ن بانـدی یې دچور او تالاله پاره برید کاوه، ده له هندوستانه په ټنو ټنو سره زر افغا نستان ته یو وړل او په زرو هندوان یې د مریانو په توګه له ځانه سره خپل ملک ته بوتلل.

څو څومره چي دده په باب زما مطالعه زیاتیدله هغو مره زیات دده تـراغیز پ لاندي راتلم او دده لوی والي زما په ذهن او دماغ کي ځاي نیوه (۲)

دامطلب ښاغلی ډاکتر ګنډاسنګهه دخپل کتاب Ahmad Shah Durrani

---

(۱) وګئ Ahmad Shah Durrani P·Vll preface د کویتی چاپ ۱۹۷۷ (دوهم چاپ) لومړی چاپ ۱۹۵۹ بمبئی.

(۲) وګئ. درانی احمد شاه (داحمد شاه درا نی پښتو ترجمه) یو دیر شم مخ په کابل کی دافغانستان دعلومو داکادیمی (پښتو بین المللی مرکز چاپ ۱۳۶٦ ش).

په سریزه کي لیکلی دی او کله چي د کتاب په شپږویشتم فصل کي دلوی احمد شاه بابا پر شخصیت او کارناموز غیزي هلته لیکي :

As we have seen in the foregoing pages Ahmad Shah's genius found its fullest expression in his remakable military exploits' He combined with his soldier's career some great human qualities Alborn Soldier the great Afghan was a natural leader of men, a human ruler an able administrator and a Patron of learning and literature· (1)

ترجمه :

موز د کتاب په تیرو پاڼو کي ولیدل چي داحمد شاه نبوغ خپله بشپړه څهره دده په فوجي شهکاریو کي ښکاره کړیده، ده د فوجي ژوند په څنګ کي ځیني ځیني لوی انساني صفتونه هم درلودل دی پیدایشي عسکرو ـ دغه ستر افغان د خلکو پیدایشي مشراو رهبرو، انسان دوسته حاکم و، یولایق اداره چي و، دعلم او ادب حامی و . (۲)

A humane ruler as he was, Ahmad shah would not draw out his sword unnecessarily, He was reluctant to Punish even the worst of his enemies and constantly manfested clemency.(۳)

ترجمه :

احمد شاه داسي بشردوسته او مهربان پاچا و چي هیڅکله یې توره بی سخت ضرورته له تیکي څخه نه ایستله . دی د خپلو سختو دښمنانو په ایداد(سزا) خوشاله نه و، او تل یې رحم کاوه (٤) دابحث یې دهغه چاپه وینا پای ته ورساوه چي له مور، پلار،

---

(۱) وګګ Ahmad Shah Durrani P. 328

(۲) وګګ . درانی احمد شاه ۴۳۹ مخ .

(۳) وګګ Ahmad shah Durrani P. 336

(٤) احمد شاه درانی ٤٥٠ مخ .

زه که نن احمد پاد شاه یم
مغرور و کله پخپل جاه یم
(احمد شاه بابا)

# اروپایان څه وایي؟

کورنۍ اوچاپریال ښځه یې داحمد شاه بابا له بدو ښځه داحمد شاه بابا د
شخصیت په باب نورهیڅ نه وواوریدلی خو د خپلې مطالعې په برکت انصاف دی
ته اړایستلی دی چې زموږ لوی احمد شاه وستایی.

دکتاب په دغه برخه کي زه غواړم دلوی احمد شاه بابا د شخصیت په باب د ختیځ پوهانو نظریې راټولي کړم ددې بحث پیل د George Forster په نظریه کوم ځکه چي زموږ د اوسنیو معلوما تو له مخي دی لومړی انګریز دی (۱) چي دګوجی سوداګر په جامه کي په ۱۱۹۷ هـ ق کال (۱۷۸۳ع) افغانستان ته راغلی او زموږ دملک په باب یې ډیر معلومات ترلاسه کړي دي.

جارج فاستر په خپله سفرنامه کي چي

A Jourey from Bengal to England

نومیږی د لوی احمد شاه په باب داسي لیکلي دی:

احمد شاه له مذهبه سره ډیره مینه درلوده خو متعصب نه و، ددغه وسیع النظره پاچا په قلمرو کي هندوان اوعیسایان ویهودان خپل مذهبی دودونه په خورا ازادی سره ترسره کوی دافغانستان سوداګری د هندوانو په لاس کي ده هغه عیسویان چي افشار نادر دایران له شمال څخه راوړه کړل اوس په کابل کي اوسي هندوان یهودان اوعیسایان په افغانستان کي ډیر هوسا او خوندي ژوند لری. (۲)

* * *

انګریز ختیځ پوه Mountstuart Alphinstone سکاټلینډی (۱۸۵۹ع مړ) دلوی احمدشاه بابا تر مرګ (په شمسي حساب) اوه دیرش کاله وروسته د ۱۸۰۹ع کال دفروری په پنځه ویشتمه (۱۰ محرم ۱۲۲٤ هـ ق) پیښور ته راغلی دی د شاه - شجاع سدوزی دربارته دایست انډیا کمپنی له خوا دلومړی ایلچی په توګه راستول سوی و، ده دپښتنو او افغانستان په باب معلومات په یوه کتاب کی راټول کړی

(۱) جارج فاستر دایست اینډیا کمپنی آف بریټانیا نوکر و، له کلکتی څخه د کشمیر پرلاری پیښور ته راغلی دی د کابل، کندهار او هرات له لاری فارس ته تللی او دبحیره کسپین پرلاری ځان لندن ته رسولی دی.

(۲) د دغه بیان انګریزی متن زما سره نه و، اروا ښاد غلام جیلا نی جلا لی دنامه احمدشاه بابا بنام مصطفی ثالث عثمانی په تلیقا تو (۱٤۵ مخ) کی د غه مطلب راوړی او ما له هغه ځایه پښتو کړی دی.

An Account of the Kingdom of Cabul and its dependen-cies in Persia, Tatary and India دی چې

نو میږی په دغه کتاب کي نوموړی الفنستون زموږ دلوی احمد شاه بابا د شخصیت په باب داسي لیکلي دي :

The character of Ahmad Shah appears to have been admirably suited to the situation in which he was plaeed...

His mititary courage and activity are spoken of with admiration both by his own subicets and the nations with whom he was - engaged either in wars or alliances, He seems to have been ----- naturally disposed to mildness and clemeney, and though it is impossible to acguire sovereign power, and perhaps Asia , to mantain it without crimes yet the memorr of no eastern prince is stained with fewer aets of cruelty and injustice.

In personal character he seems to have been cheerftul, affable and good natured He maintained considerable dignity on state occasions, but at other times his mannars were plain and familliar . . .

ترجمه :

په کوموشرایطوکي چي احمدشاه واقع و، داحمد شاه خوی و خصلت دهغوشرایطوسره ډیرموزون و ...

دده خپل رعیت اوهغوملتونو چي له ده سره یې جگونه یامعاهدې کړي وې ټول دده زړه ورتیااو نظامی فعالیت ستایي ، داسي ښکاری چي دده طبیعت نرمی اوزړه سوي ته مایل وکه څه هم دپاچاهي قدرت لاس ته راوستل او په آسیاکی دهغه ساتل بې ظلمه ممکن نه دی خوبیاهم داحمدشاه پرلمن یاندې د ظلم تپلي تر هر شرقي پاچالزي دي .

داحمدشاه شخصی خوی وخصلت بشاش او له مینی ډک و، دی د ښه طبیعت خاوندو، ده په رسمی مواقعو کي خپل وقاراوتمکین په ښه توگه ساته خو په غیررسمی

وختوکی به داولس دخلکو سره دده سلوک ډیر ساده اومخلصانه و... (۱)

نوموړي مانستوارټ الفنستون پهخپل دغه کتاب کي داحمدشاه غازي پهباب داهم لیکلي دي :

ترجمه:

که چیری کوم آسیایی پاچادخپل ملک په خلکو کی دمنني حق ولري ، هغه احمدشاه دی . (۲)

فریر J.P.Frrier په فرانسوي ژبه دپښتنو تاریخ کښلی دی ددغه تاریخ انګریزی ترجمه چي په ۱۸۵۸ع کال په لندن کي چاپ سوې ده History cf The Afhans نوميږي ، په دغه انګریزي ترجمه کي داوی احمد شاه بابا دشخصیت په باب داسي لیکلي دي :

His reign was remarkable forth good which he spread around him and his generosity and simple and modest demeanour in the midest of courtly pomp made him Loved by all who approached his person, he was of easy aceess and administered justice upon !he most aquitable principles without a harsh word even to those who deserved it. He was concelliating persuasive and no one even Complained of the Judjment that he gave.

ترجمه :

داحمدشاه زمانه په دې شهرت لري چي په ملک کي خوشالي اونیکمني ډیري وې په شاهي شان وشوکت کي داحمدشاه ساده (بې تکلفه) وضعي په ډیروزړونو کي دده مینه پیداکړې وه ، خلک دده حضورته دعرض ودادله پاره په ډیره آساني سره رسیدلای سوای ، دده عدالت منصفانه وه ، دده له هغه چاسره هم تندي

---

(۱) وګئ. د کابل دسلطنت بیا ن د وهم توك ۲۶۷ مخ او دپښتنو تاریخ لومړی توك ۱۳۶ مخ ، درانی احمدشاه ۱ ٤٤ مخ .

(۲) وګئ. دکابل دسلطنت بیان دوهم توك ۱۱۹ مخ .

اوترخي خبري نه کولی چي دقهراوترتني وربه و، ده له هرچا سره په مینه خبري کولې، هیڅوک دده له فیصلې څخه ناراضه نه و. (۱)

جرمني فریدریک انګلز (۱۸۲۰ - ۱۸۹۵ع) ( ۱۲۳۶ - ۱۳۱۳هق)د۱۸۵۷ع کال داګست پرلسمه (۱۹ذی الحجه ۱۲۷۳هق ) دافغانستان په باب یومضمون لیکلی اوپه ۱۸۵۸ع کال دنیوامریکن انسکلو پیډیاپه لومړی توک کي خپور سوی دی، ددغه مضمون پارسي ترجمه جنرال ګل آغاکړیده، په دغه ترجمه کي د لوی احمدشاه باباپه باب داسي لیکلي دي:

«سلطنت وقلمرواحمدشاه ازخراسان تادهلی امتدادیافته بود، بازورحتی کشور مرهته هارابه آشتي واداشت، این مصروفیت های بزرگ نظامی مانع آن نشد که اوبه انکشاف ورونق دادن صلح آمیز یکتعدادهنرهاتوجه ننماید ـ او بمثابهٔ شاعرومورخ شهرت بزرگی کمایی کردودر۱۷۷۵ع وفات یافت.» (۲)

پرملی غلام محمدغبارپه افغانستان درمسیرتاریخ (۴۸۰ مخ) کي د دغه مطلب داسي راوړی دی:

«ازخراسان تادهلی زیرفرمان او(احمدشاه) بود، معهذا ازروش صلح آمیز عاری نبود، اویک شاعرومورخ هم بود ....»

کرنیل میلسون د پښتنو د تاریخ په باب یوکتاب لیکلی دی چي

History of Afghanistan
From the earliest Period to outbreak of the war of 1878

نومیږي، ده پخپل دغه کتاب (۲۷۷) مخ کي دلوی احمد شاه بابا په باب داسي کښلي دي:

---

(۱) وګ. د پښتنو تاریخ، لومړی توك ۱۳۱ مخ، ننګیالی پښتانه ۱۶۱ مخ.

(۲) وګ. افغانستان ۷ مخ د لوی احمد شاه بابا د مرګ کال چی ۱۷۷۵ع لیکلی دی سهی نه دی. لوی احمد شاه بابا د۱۷۷۲ع کال د جون په دریمه ورځ مړدی (۲ ربیع الاول ۱۱۸۶ هق) زموږ په ځینو کتابو کي دلوی احمد شاه بابا د مرګ تاریخ (۱۱۸۶ هق کال د رجب شلمه ښوول سویده هم سهی نه دی.

Above all he (Ahmad Shah) endeavoured to impress upon every aet the stamp of nationality· He was King to extend Afghan authority to found an Afghan nationality and spread Afghan Ideas, in apl his dealings with the tribes it was to this spirit that he appealed and it was this appeal that assured his success.

ترجمه :

داحمدشاه ترټولو زيات کوشش داوچي خپل هر کارته دقامولي رنګ ورکړي دوبه ويل زه ددې لپاره پاچا سوی يم چي افغان قدرت زيات او پراخ کړم افغاني مليت جوړ کړم اوددوی دودو دستور رواج کړم احمد شاه بهتل دقوميت په نامه دځان دملاتړ لپاره قبيلې رابللې اوله دغه امله بهدوی تل دده ملاتړ وو . (۱)

نومړي کرنيل ميلسون دخپل تاريخ په ۲۹۲ مخ کې کښلي دي:

The cheip merit to be ascribed to Ahmad Shah is undoubtedly the consolidatien of the Atghan tribes He made !hem a nation

ترجمه .

بې شکه داحمد شاه ستر لياقت داوچي پښتانه قومونه يې متحد کړل اوله دوی څخه يې يوملت جوړ کړ.(۲)

Sir Olaf Cairo زموږ د زمانې يوانګريز مؤلف وچي د ۱۹۸۱ع کال د نومبر په وروستۍ هفته (قوس ۱۳٦۰ه ش) کې ومړ (۳) دده دوه کتابه چې د Sovet Empire او The Pathans په نومونو په ۱۹٥٤ - او ۱۹٥۸ په لندن کې چاپ سوي دي

(۱) وګ. دپښتنو تاريخ لومړی ټوك ۱۳۲ مخ .

(۲) وګ. » » » » ۱۳۳ مخ .

(۳) سراولف کيرو ديرش کاله په هندوستان کې تېر کړی دی ، دی ديره موده دمحکوم هندوستان د وزارت خارجه سکرتری و ، بيا په پېښور کې د پرنګيانو تر ټولو وروستی ګورنر سو .

مالیدلي دي، دهیه The pathans (۲۶۹مخ) کي دغازی لوی احمدشاه بابارحمة‌الله علیه دشخصیت په باب کښلي دي .

Ahmad(1) hadabold and commanding turn of natural qenius He was an adept in the difficult art of the managment of men and tribs Han of war indeed he was, but one disposed by nature to mildness and elemeney and prone to policies of conciliation where the way lay open, He was a kinq who never lost the common touch with his Durrani- and GholJi Coursellors .

ترجمه :

احمدشاه زړه ورسړی و ، دمشرتابه له‌پاره یې فطري نبوغ درلود ، د خلکو او قبیلو دتنظیم په‌مشکل فن کي استاد و ، دی واقعاً دجنګ سړی و ، خو په طبیعت کې یې زړه سوی اونرمي پرته‌وه ترکومه ځایه چې‌به کیدای سوای ده د روغې او جوړې سیاست پرمخ بیوه دی هغسې پاچا وچې دخپلو درانو اوغلجو مشاورینو سره یې رابطه هیڅکله پرې نه ښوولـه .

دپروطن اوملت مین غازی ستر تولواك لوی احمد شاه بابا ښیګڼي د ومره ډیري دی چي راتـه‌وانوونکي یې مجـبوریـږي ووایي :



داهان نګه تنګ وګل حسن تو بسیار
ګلچـین تو از تنګیٔ داهان ګـله دارد



(۱) کیرو عادت لری چی زموز له ستر تولواك سره « شاه » نه لیکی ، ده ته به بنایی انګریزیت ما بی اجازه نه ورکولـه چی دپښتنو له شهنشاه سره چی دپانی پت‌قهرمان دی دشاه لقب و لیکی .

# The Hero of Panipat

## Ahmad Shah Baba The Great

## in the Eyes of the People

**by:**

**Academician Abdul Shakoor Rashad**

International Centre for Pashto Studies

Afghanistan Academy of Sciences

**Kabùl - 1992**